# ځرک

مجاهدينو ته د اسلامي امارت
دزعيم اميرالمؤمنين
ملا اختر محمد منصور (حفظه الله) لومړنۍ مخابروي وینا

دیارلسم کال ، لومړۍ شماره، پرلپسې ۹۰ یمه ګڼه میزان ۱۳۹۴ل، محرم ۱۴۳۷هق، نومبر ۲۰۱۵م

- اعداد يو شرعي مسؤوليت او جهادي ضرورت
- ګام په ګام فتحې او برياوې

- تعليم او تربيه د ژوندانه اړتيا!
- دميانمار (برما) نوې ټاکنې! او ديوشمېر مسلمانانو هيلې...
- او نن طالبان دسولې دپروسې دمهم لورې په توګه !!!
- هغه عالم چې رحلت يې په رښتيا د عالم مرګ و!
- لاف است و ګزاف بی مايه است و پوچ
- ددريو اتلانو ياد او کارنامې
- راځئ! له مفکر يې واوورو، چې رژيم يې له امريکايي مرستو پرته، څو ورځې دوام کولای شي؟



**علمي ، فرهنګي ، ټولنيزه اسلامي خپرونه**

دیارلسم کال لومړۍ شماره، پرلپسې ۹۰ یمه ګڼه، میزان ۱۳۹۴ل محرم ۱۴۳۷هق، نومبر ۲۰۱۵م

امتياز :

دا متيازخاوند : دافغانستان اسلامي امارت دفرهنګي چارو کميسيون

مسؤل مدير : عبيد تنوير

ليکوال پلاوی : ډاکټر صابر ، حميد ، جميل مېړنی او افضل محمد تراب

ګڼون :

| | |
|---|---|
| افغانستان : | ۱۸۰ افغانۍ |
| پاکستان : | ۲۴۰ کلداري |
| امريکا : | ۶۰ ډالره |
| اروپا : | ۶۰ يورو |
| يوه ګڼه : | ۱۵ افغانۍ<br>۲۵ کلداري |

يادونه

حتمي نه ده چې په څرک کې خپرې شوې مقالې داداري دپاليسي ترجماني وکړي هره ليکنه دليکوال خپل نظر دی.

تخنيکي چارې: تخنيکي څانګه

پتې :

srak_111@yahoo.com

# لړليک

# راځی ! له مفکرنه یې واورو ،
# چې رژیم یې له خارجي مرستي پرته څو ورځې پایښت لري ؟

دکابل رژیم دپخواني مشر (کرزي) په اړه داخبره مشهوره وه چې په کومه ورځ به هغه چرس اوبنګ وهلي وو ، نو سختي سیده اوسپیني خبري به یې کولي ، لکه یو ځل یې چې دلویې جرګي په خیمه کې په ډیر و خلاصو ټکو وویل چې او په حکومت کې راټولو خلکو : سم شی ، خیانتونه اوجفا وي له ولس سره مکوی اوفرصتونه له لاسه مه ورکوی ، کنه سره پوهیږو چې که خارجي قواوي نه وای مونږ اوتاسي به اوس چیرته ګرځیدو ، طالبانو په کومو سوړو ننویستلي وو او کومو هیوادونو ته به یې پسې اخیستي وو ، که داځل راپسي راغلل اوسره په مخه یې کړو پوه شئ چې نه به هغه سوړي وي اونه هغه هیوادونه چې سره وموساتي !!!

خو دکرزی دځای ناستی او دنړی دوهم مفکر اشرف غني په باب بیا داسې ویل کیږي چې کله هغه کوم جام اوبوتل ! په سرواړوي اوپه عین حال کې یې دمصنوعي معدې جوش هم نورمال نه وي ، بیا ښه حقایق وایی .

څو ورځي مخکې یې په ارګ کې دمعترضو هزارګانو دیولړ غوښتنو په ځواب کې چې استازویې دځپلو نورو مطالبو ترڅنګ په غزني کې دیوې مجهزې قول اردو دتاسیس مطالبه هم وکړه ترڅو یې په منځ دکابل - کندهار لویه لار ددوی په مخ بې خطره اومصؤنه وي ، مفکر په ځواب کې ورته وویل : مه برایتان به صراحت میګویم که خارجي ها درر ابطه اردوی وقول اردو های ما معیار وچوکات رامشخص ساخته ، یک نفر هم را زیاد قبول نمیکند ، معاشات وتجهیزات اردو ومامورین دولت را خارجی ها میدهد ، اګر یک هفته کمک وهمبستګي خارجی ها نباشد دولت ما دوام کرده نمیتواند !!!

په همدې مجلس کې بیا دمفکر اجرایوي ریس اودپخوانی ټلوالې وارث (عبدالله) هڅه وکړه چې دهزاره ګانو استازو سترګو ته خاورې وروشیندي چې ګواکې په زابل کې دداعشیانو له پنجو نه چې کوم ۸ تنه هزارګان راخلاص شول هغه داردو او امنیتي قطعاتو کارنامه او ابتکار وو ، خو ۲۴ ساته ورسته دعبدالله اونورو سوړونو دولتي چارواکو دغه ادعاوي هغه وخت رسوا اوشرمنده وګرځیدي ، چې خپله هغو خلاصو شوو هزارګانو رسنیو ته وویل چې دولت دروغ وایی ، دداعشیانو له منګلو څخه دوی طالبانو ازاد کړل .

له بل لوري دکابل رژیم دجنرالانو خبري هم چې کله کله یې راباسي دارګ له مفکرینو او ډاکټرانو څخه په شرمندګي اورسوایي کې کمي نه وي ، ددفاع وزارت مهمي ستې جنرال (وزیري) څو ورځي وړاندې دخبرو په یوه ګردی میز کې ترډیره حده کوشش وویست چې دهلمند په سنګین کې دځپلو قواوو مورال پیاوړي وښیي ، خو چې کله خبریال مستند شواهد دهغه مخ ته کیښودل چې سنګین کې دولتي قواوو درنه ماتي لیدلي او زیاتي سیمي اوبیزونه طالبانو نیولي نو وزیري په ټیټو او ځوړنده شونډو منله چې هو په سنګین کې یې امنیتي ځواکونو له ډیر بد حالت سره مخ وو نیږدې لس ورځي هغوی ته خوراکي مواد اوتجهیزات مونږ ونشو رسولای ، نو بیا مونږ هغوی ته اجازه ورکړه چې طالبانو ته وسلي کیږدي اوتسلیم شي .

په هرصورت ، یوچا چې کلونه کلونه امریکایي روزنه او تربیه لیدلي وي ، خپل هویت اوضمیر یې دامریکا اوغربي هیوادونو دپناه ترلاسه کولو په خاطر پلورلي وي ، نو هغوی ته بیا کټ مټ هغه څه مهم دي چې امریکا او بادارانو ته یې مهم وي ، داسې کره معلومات شته چې په ارګ او دفاع وزارت کې ۲۴ ساته امریکایی ټیم او مشاورین موجود وي ، هغوی چې څه ورته لیکي او قومنده ورکوي ، دکابل رژیم ګوډاګی څیرې پرې کټ مټ هماغسې شخوند وهي ، یعني دوی داحق نلري چې امریکایی مشاورینو ته ووایي چې په دغو خبرو اواعترافاتو زمونږ سپکاوی کیږي اوپه یوه پیسه کیږو .

همدا علت دی ، که داشرف غني خوښه وي کنه ارومرو به هغه څه وایي چې دامریکایانو تسلط او باداري پکې ښه تمثیلیږي . لکه داورستی اعتراف یې چې په خبره یې که یوه اونی هم په دوی ډالراو فوځي تجهیزات ودریږي ، دوی له سقوط او نابودی سره مخ دي ، چې ربښتیا هم همداسې ده !!




مجاهدينو ته د اسلامي امارت د زعيم

# اميرالمؤمنين ملا اختر محمد منصور حفظه الله

## لومړنۍ مخابروي وينا

يادونه:

د روان ۱۳۹۴هـ ش کال د عقرب د مياشتې په شپږمه نېټه د اسلامي امارت زعيم اميرالمؤمنين ملا اختر محمد منصور صاحب د افغانستان په لراوبر کې په سنګر کې ناستو مجاهدينو ته د مخابرې له لارې وينا وکړه، دغه وينا چې د يوه عمومي نمبر په توسط په درست افغانستان کې پخش کيدله له ړاندې ورته مجاهدين خبر کړای شوي وو تر څو يې په ټاکل شوي وخت واوري، ددې ليکنيز متن په لاندې توګه لوستلای شئ. اداره

نحمده ونصلی علی رسوله الکريم، اما بعد
اعوذ بالله من الشيطن الرجيم
بسم الله الرحمن الرحيم

اذا جاء نصرالله والفتح ورأيت الناس يدخلون في دين الله افواجا، فسبح بحمد ربک والستغفره انه کان توابا. صدق الله العلي العظيم.

السلام عليکم ورحمة الله وبرکاته

تر هرڅه د مخه محترمو مجاهدينو ورونو، مشرانو او کشرانو! تاسو ته او ټول ولس ته د دې نويو فتوحاتو مبارکي وايم، الله پاک لره دې شکر وي، حمد او ثنا دې وي چې الله تعالی دا فتوحات د مجاهدينو او د مسلمانانو په نصيب کړل، او د هغو مجاهدينو قربانۍ دې الله تعالی په خپل دربار کې قبولې کړي چې په شهادت رسېدلي، زخميان شوي او يا نور په دې خدمت کې د جهاد او د دې فتوحاتو ستړي شوي دي او زحمت يې کړی او تکليف يې کړی وي او يا کومو خلکو همکاري ورسره کړې وي، چا ډوډۍ ورکړې وي، شپه يې ورکړې وي او چا د تجهيزاتو په برخه کې کومک او مرسته ورسره کړې وي، ټولو ته دې الله پاک په دنيا او اخرت کې ښه بدله ورکړي او الله پاک دې د دوی دا خدمتونه په خپل دربار کې قبول وګرځوي، او هغه بنديان مجاهدين او عام مومنان مسلمانان او مظلوم اولس چې بنديان دي هغو ته د خلاصون دعا کوو، الله تعالی دې له بنده څخه ازاد کړي، الله تعالی دې د دې دښمنانو له منګلو څخه نجات ورکړي او الله جل جلاله دې په خير سره خپلو ځايو ته په عافيت او سلامتيا سره راولي.

مجاهدينو ورونو مشرانو او کشرانو!

يو څو خبرې درته کوم، تاسي بايد په دې خبرو باندې عمل وکړئ او غور ورته ونيسئ.

اولنۍ خبره مو دا ده چې له اولس سره د مجاهدينو ښه چلند ضروري دی، مجاهدين ورونه بايد له اولس سره ښه سلوک وکړي، او د دوی احترام وکړي او د دوی د همکاريو او د دوی د کومکونو شکر ګزاره واوسي، او د دوی د تحفظ او حفاظت او د مال او ځان د حفاظت کوشش وکړي، له دوی

سره همکار و اوسي، د دوی زړونه وساتل شي، ترحم وربانـدي وشي او د شفقت لاس ورباندې راتير شي. دا هغه غیور اولـس دی چې په دغه مسکنت کې او په دغسې تکلیفونو کې یې تاسي تـه د همکـاری اوږه درکړې ده او تاسي تـه رهنمـایي کـوي، تاسي تـه شپه درکـوي، تاسي تـه ډوډی درکـوي او ستاسي سره اوږه په اوږه ولاړ دي، نو د دې اولـس همکـاري مجاهدینو ته زیات اهمیت لـري، موږ او تاسي بایـد د دې اولـس د همکـاري او د دې اولـس د کومکونـو شـکر گـزاره واوسو او موږ باید د دوی سره ښه سلوک او ښه چلند وکړو، نو دا بـه زمـوږ او ستاسـي لپـاره د کامیـابی او پرمختـگ ښـه ذریعه وګرځي.

دا اولس په موږ او تاسي باندې حق لـري، د دې اولـس بچیان په دې لاره کې شهیدا شوي، زخمیـان شوي او د دې اولـس بچیـان بنـدیان شـوي او کورونـه یـې د دښـمنانو پـه بمبـاری باندې لـه منځـه تللي، دوی پـه داسـې حـالاتو کـې ستاسي سره دربېدلي چې د سر او مـال تـاوان ورتـه رسـېدلی دی. دا داسي غیور اولس دی او داسي متـدین او دیانت داره خلک دي چې نه د خلکو ډالرو تـه ګوري او نـه یـې د خلکـو نورو سهولتونو تـه کتلي دي، پـه داسـې وخت کـې ستاسـي سره اوږه په اوږه ولاړ دي چې تاسي یې اوس په خپلو سترګو باندې وینئ او په عمل کې یې هم ثابته کړې ده. له دې اولـس سره ستاسي سلوک باید د شریعت موافق وي او د دې خلکـو سره ښه اخلاق باید وشي، د دې خلکو زړونه بایـد د ځـان شـي او د دې اولس سره په غم او درد کې ځان شریک وبولو.

تاسي د علماؤ او د وطن د قـومي مخورو او مشـرانو او مخلصو انسانانو سره ښه چلند کوئ، د هغو احترام کوئ، ښـه سلوک ورسره وکړئ، له هغو څخه مشوري واخلئ او لـه هغـو سره خپل نظریات او مشورې شریکي کړئ، دا بـه ستاسـې د کامیابی علامه وي.

د اولس چې کوم عام المنفعه ځایونه دي، هغـو تـه ضـرر ونه رسیږي او زیانمن نه شي، هغه د اولس په ګټه دي، اولـس ته یې فایـده رسیږي، لکـه بندونـه، پولچکـان، کلینـک یـا مدرسه او ښوونځی چې عام المنفعه ځایونه دي، او اولس تـرې استفاده کـوي، کـه مـو پـه وسـه وي او هرڅومره چې ستاسـې وس او طاقت وي په عـام النفعـه کـارونو کـې کومـک ورسـره وکـړئ، او زمینـه ورتـه برابـره کـړئ، چـې دوی د هغـو څخـه استفاده وکړي، او د دوی د هوسایي سبب وګرځي، د دوی د صـحت سبب وګرځي، او د دوی د علم او تـدریس او تعلـیم سبب وګرځي، هغـو کـارونو تـه یـې متوجه شئ چې هغـه د اسلامي شریعت او د اسلامي قـانون سره برابر وي، پـه هغـو کې ورسره همکاري وکړئ، زمینـه ورتـه برابره کـړئ چـې لـه داسې سهولتونو څخه برخمن شي، چې هغه د دوی د ژوند ګی د سهولت لپاره ښه ذریعه وګرځي.

د دښمن هغو دسیسو او هغو فریبونو او هغـو کسـانو تـه اجازه مه ورکوئ چې دوی پـه وطن کـې تخریب کـوي یـا پـه یوه او بل نامه د جهاد له نوم نه غلطه استفاده کوي.

مجاهدینو ورونو! تاسي دې خبرې ته متوجه شئ چې د دښمن صفونه بې نظمه دي، او وارخطا دي، تاسي بایـد لـه دې څخه په استفادې سره خپلـو جهـادي کـارونو تـه ښـه متوجـه شئ، ښه استفاده وکړئ او داسي ښـه سنجیده عملیـات بایـد ترسره شي چې هغه د کامیابی سبب وي، دښمن مـو وارخطـا دی، رعب یې په زړه ننوتلی دی، تاسي وګورئ چې پـه ډلـو ډلو عسکر تسلیمېږي، هغه لاریې پریښـې چـې د یرغلګـرو او د دوی د ګوډاګیانو سره پـه څنـګ کـې ولاړ وو، هغـه کـه د پوهاوي په سبب تسلیمېږي او یـا پـه جهـاد کـې پـه مخـامخ جګړه کې مجاهدینو ته تسلیمېږي.

تاسي نیتونه سم کړئ او تواضع الله پاک ته وکړئ او د دې فتوحـاتو د شـکریې لپـاره عـاجزي وکـړئ، چـې نـور هـم ستاسي لپاره د کامیابی ذریعه برابره شي.

د دښمن په تبلیغاتو باندې مه خطاوزئ، خپـل جهـادي بهیر ته متوجه شئ او خپلې جهادي تګلارې ته متوجه شئ،

که تاسو د الله تعالی په لاره باندې برابر یاست او تاسې د الله پاک لاره مستقیمه نیولې وي نو تاسي به ووینئ چې ستاسې د دښمنانو سنګرونه به ستاسې په لاس کې وي، ستاسي د دښمنانو مراکز به ستاسې په لاس کې وي او تاسې به وینئ چې د اسلامي امارت بیرغ به د هر دښمن په سنګر او د دښمن په هر مرکز باندې رپېږي، دا د خوشحالۍ ځای دی او دا بیرغ د مسلمانانو له شعایرو یوه علامه ده چې تاسو په خپل لاس کې اخیستي وي. دا سپین رپانده بیرغ چې د دښمنانو په سنګرو باندې یې تاسي په خپلو لاسو جګوئ دا د ډیر شکر ځای دی او دا د الله تعالی یو نعمت دی چې موږ او تاسې ته یې په نصیب کړی دی، داچې تاسي دا د اسلامي امارت بیرغ په خپلو لاسو باندې را اخلئ او د دښمن په مراکزو باندې یې د فتحې په وخت کې دروئ، دا د الله تعالی نصرت دی چې له تاسې سره یې کړی دی، نو د الله تعالی څخه به شکر ګزاره اوسېږئ او الله تعالی ته به نور راجع کیږئ، موږ ته به دعا کوئ او موږ به تاسې ته دعا کوو، ستاسي دښمنان به ناکامه او سرنګونه تاسې وینئ، تاسي به کامیابه او سرلوړي ګرځئ، داسي اطاعت وکړئ چې هغه د الله په دربار کې منظور وي او د جهاد ثمره مو بې ځایه ولاړه نه شي، نو به تاسې کامیابه یاست، ستاسې په لاس کې به د دښمن غنیمتونه وي، ستاسې په لاس کې به د دښمن اسلحې وي، دښمنان به مو ژوندي په لاس کې وي.

قومندانان او نور ډلګۍ مشران باید د خپلو مجاهدینو اخلاقي تربیې ته نور هم متوجه شي، د دوی دیانتداري ته متوجه شي، د دوی روزانه اعمالو ته متوجه شي، له اولس سره د دوی کړو وړو او له هغو سره چلند ته متوجه شي، د هغو په ګرځېدو را ګرځېدو باندې نظارت وکړي، او د سهار او ماښام اذکارو ته یې متوجه کړي، د جماعت د لمانځه پابند یې وګرځوي، او نور داسې اخلاق چې له انسانه سره مناسب وي، ښو اخلاقو ته یې متوجه کړي. دا دیني او اخلاقي تربیه چې ده، دا د انسان لپاره یو غټ کمال دی او د کامیابۍ لپاره یوه ښه ذریعه ده.

لغړزني (کم عمره) باید په دې صف کې نه وي، هغسي لغړزني، مجاهدین پرې پوهیږي، دوی ته دا اندازه لګیږي چې دغه څوک په ګروپ کې د اوسېدو لپاره مناسب دی او یا دغسي څوک په مجاهدینو کې د اوسېدو لپاره مناسب نه دی، نو هغه خلک هغه کشران مجاهدین چې ږیره ونه لري هغه باید په مدرسه کې خپل سبقان ووایي او یا د خپل مور او پلار خدمت وکړي.

مجاهدینو ورونو! تاسو مطمئن اوسئ، چې زه او زموږ نور ټول مشران او مسؤولین، ټول خپلو کارو ته ښه متوجه دي، او نور به هم ان شاء الله په دې کارونو کې کوشش کوو چې کارونو ته متوجه شو، تر څو دا کارونه نور هم پر مخ ولاړ شي او آینده به هم توجه کوو، هم به تاسې ته توجه کوو او هم به د امارت نورو کارونو ته، هغه که سیاسي برخه کې وي که په اقتصادي برخه کې او که په نظامي برخه کې وي، په هر اړخ کې چې وي موږ او نور مشران به ان شاء الله دې ته متوجه یو.

الحمدلله صف متحد دی، او نور به هم د اتحاد او متحدوالي کوشش کوو، هغه اوازې او کومې خبرې چې د دښمنانو له خوا کېدلې، چې صف به سره جلا جلا شي، سره ټوټې ټوټې به شي، لله الحمد هغې اندازې ته نه ورسیده، صف متحد دی، صف یو دی، دا چې صف متحد پاتې شو، دا د الله تعالی لوی احسان دی، او چې زموږ سره یې دا احسان کړی دی موږ د دې شکر نشو ادا کولی. د دښمنانو هغه تبلیغات او هغه مصارف چې د دې لپاره یې کړي وو چې دا صف ټوټه ټوټه شي، لله الحمد الله پاک د دې څخه نجات ورکړ، اوس صف متحد دی، او نور به یې هم په متحدوالي او یو والي کې کوشش کوو، تاسې مطمئن اوسئ.

مجاهدینو ورونو! مشرتابه ټول ستاسې د دې کړنو څخه خوشحاله دي، او دا فتوحات چې حاصل شوي دي، دا

ستاسې د کامیابۍ نښه ده او ستاسې د اطاعت نښه ده او ستاسې د صبر او استقامت نښه ده، له دې څخه داسې معلومېږي چې تاسې اطاعت کړی دی، تاسې صبر او استقامت کړی دی او تاسې دا تکلیفونه ګاللي دي. مشران ټول خوشحاله دي، او دعا درته کوي، چې دا فتوحات ستاسې په لاس الله تعالی حاصل کړي دي او په تاسې کې اصلاحات راغلي دي، خپلو اعمالو ته متوجه شوي یاست، او د دې ښکارندویي کوي چې الله تعالی مو نصرت کړی دی، الله تعالی ته مو رجوع کړې وي، او عاجزي ښکاره شوې وي، او د ریا او کبر څخه مو ځان ساتلی وي، له غروره څخه مو ځان ساتلی وي، او له ظلم څخه مو ځان ساتلی وي، نو د امارت مشران او کشران ټول خوشحاله دي، نور به هم تاسې ته دعا کوي، له خپلو دعاګانو څخه به مو نه هېروي او له خپلې توجه څخه به مو نه هېروي.

اصلي هدف اعلاء کلمة الله ده، او اسلامي نظام قائمېدل دي، نو موږ به دا جهاد تر هغه پورې جاري ساتو چې اعلاء د کلمة الله راځي او اسلامي نظام قائمېږي، نو ان شاء الله دا جهاد به جاري وي، د دښمن تبلیغاتو ته غوږ مه نیسئ، خپلو کارو ته متوجه شئ، کارونه الله پاک سموي، موږ او تاسې به خپلو کارونو ته متوجه یو، ان شاء الله نصرت به الله تعالی راولي.

دعا به کوو، ټولو مجاهدینو او مسلمانانو ته دعاوي کوئ، ټولو مؤمنانو ته دعاوي کوئ، ستاسې دعاګانې قبلېږي. تاسې د دښمن په مقابل کې په سنګر کې ناست یاست، تاسو خپل سر نذرانه ورکړی دی، تاسې تکلیفونه ګاللي دي، ستاسې دعا به الله جل جلاله قبلوي، ټولو مسلمانانو ته چې په هر ځای کې وي، د نصرت او فتحې دعا کوئ، او خپل مشران له دعاوو څخه مه هېروئ.

نور مو الله تعالی ته سپارم.

السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته

## ښې تحفې

١= پلار ته ښه تحفه عزت دی

٢= مور ته ښه تحفه احترام دی

٣= استاد ته ښه تحفه اخلاق دي

٤= مېرمن ته ښه تحفه الفت دی

٥= کوچنې ته ښه تحفه تربیه ده

٦= کشر ته ښه تحفه مهرباني

٧= ملګري ته ښه تحفه وفاده

٨= ګاونډي ته ښه تحفه همدردي ده

٩= ټولنې ته ښه تحفه خدمت دی

١٠= اخرت ته ښه تحفه لمونځ دی

## مشالونه

"ذاکر"

دغرونو پر لمنو پرهواره مشالونه
دې کلي کې بلېږي تر سهاره مشالونه
نه خپله شوه لیلا ، نه دمجنون اروا مړه شوه
لا څو یې خمارساتې انتظاره مشالونه
پرون دزلفو سیوري پر لمبو باندې خواره وو
نن ځکه پرګودر ښکاري بې شماره مشالونه
دمیني دپتنګ سینه لا نه ده پخه شوې
لا اوس یې هم راخیژي له پرهاره مشالونه
نري نري لوګي دي څوک ویده دي پر سکروټو
شیرینې ! سپېلنې شول ستا لپاره مشالونه
شفقه پرکړېوان دې لا ډېر غشي دي ټومبلي
په غېږ کې دي ځنګېږي بې ازاره مشالونه
ترسوي چنار لاندې غلي غلي سترګکونه
انځور وو لکه ستا د سترګو یاره مشالونه
دمیني لیوني لکه چې تېر وو پدې پلونو
ذاکره ! لګېدل پردغه لاره مشالونه

# داسلامي امارت زعيم

## مجاهدين ، څير ، تقدير او ولس يې وويا پړه !

پرون دافغانستان داسلامی امارت زعيم محترم ملا اختر محمد منصور حفظه الله ، د هيواد په لراوبر کې ټولو مجاهدينو تــه د مخـابرې لـه لارې ديـوې ارزښتناکې اوهراړخيزې وينا په تـرڅ کې چې شاوخوا ۱۳ دقيقې يې دربر واخيست ، پـه تـودو سنګرونو کې يې ناست مجاهدين تقدير ، خپلومهمو دندو ته څير اوترڅنګ يې افغان غيوروولس دخپلو اتلوليو، رشادتونو اوپه روان جهاد کې دهغوئ دستروفداکاريو له امله وويا پړه .

دمحتـرم منصور صاحب دوينا مهم ټکي دهيواد په سطحه دورستيوتاريخي فتوحاتو،جهادي لاسته راو ړنـو او پـه دې لار کـې دمجاهـدينو داتلوليواوقهرمـانيو قـدرداني ، دروان سـپيڅلي جهـاد پاکوشـهيدانو تـه دعقيدت نذراني ډالي کول اود راتلونکي لپاره مجاهدين خپلو درنو مکلفيتونو ته څيرول اوتنبيه کول وو

پـه دې برخـه کـې دمشـفق اومجاهـد منصـور صاحب توري مجاهدينو ته داسې وو :

نـن چـې ستاسـې پـه لاس ددښـمن پـه مراکـزو او سنګرونو سپين بيرغونه رپانده اوريږي اوکوم فتوحات چې حاصل اوترلاسه شوي دادالله تعالی داحسان اونصر ت ترڅنګ ستاسي د صبر ،استقامت او اطاعت نښه ده ، نو ددې لپاره چې ددغو فتوحاتو سلسله روانه اودغه الهی نصرت نورهم زمونږ اوستاسي شامل حال ووسي ،له تواضع به کـار اخلو ، غـرور اوتکبر بـه نکوو ، خپل اعمال اوکردار به دشريعت داحکامومطابق برابروو .

داسـلامي امـارت زعـيم دخپلـې جـامعي وينـا پـه يـوې برخـه کې پـه مجاهدينو غږ وکړ چې د فتحـو او سوبمنو عملياتو لړۍ جاري وساتي، ځکه دښمن وارخطا ، صفوف يي ګډوډ او مورال يي بايللی دی ، تاسې بايد لـه دې فرصت نه په استفادې په دښمن کاري بريدونو زيات کـړی، تـر څـو پـه جهـادي ډګـر کـې لا ډيـر فتوحـات ترلاسـه او وطـن مـو د اشغال او فساد لـه بـدمرغۍ څخـه نجات وومومي .

دعاليقـدر منصـور صـاحب دورسـتی تـاريخي وينـا بل مهم اړخ ، دافغان ولس دجهادي کارنامو او قهرمانيو وياړنـه اولـه اسلامي امـارت سـره دهغـوئ داخـلاص او مرستو تمجيـد وو ، نوځکـه دمحتـرم زعيم دوينا زياتره ټکي پـه دې راڅرخيدل او مجاهـدينو تـه يې پـه باربار داتلقين ورکاوه چې ددغه غيور اوميړني ولس قدر او عزت وکـړی ، نيک چلند ورسره کوی ، غوره مشورو ته يې غوږ ږدي او ددوئ دسهولت ، سوکالی او ارامي لپاره سعيی اوکوششونه کوی .

ښـاغلي منصـور صـاحب پـه دې برخـه کـې داسـې مشـفقانه اولـورونکي تـوري درلـودل : دا اولـس غيـور، مجاهـد او متـدين اولـس دی چـې ددين لپاره يي ډيـرې

قرباني ورکړې، دا اولس په موږ او تاسو حق لري او په حقیقت کې زموږ ټولو لاسته راوړنې د همدې مجاهد اولس د همکارۍ نتیجه ده، د اولس مشرانو، سپین ږیرو، علماء کرامو او مخورو ته باید ډیر زیات احترام ولرو، هر ځای او هر وخت د هغوی قدرداني وکړو، له هغوی څخه مشورې وغواړو، عام المنفعه تاسیساتو لکه د اوبو بندونه، مدرسې، ښوونځي، پلونه ، کلینکونه او دغسې نورو تاسیساتو ته هیڅ نوع زیان ونه رسوي بلکې د ساتنې لپاره یې لاس په کار شي، هر هغه ځای چې ګټه یې اولس ته رسیږي باید حفاظت یې وشي، او د هغو کسانو مخه ونیول شي چې ددغسې تخریبي اعمالو په ترسره کولو سره د مجاهدین رنګ بدوي



هو ! درنولوستوالو!

اسلامي امارت دښاغلي زعیم ورستی وینا او زرین توري له شک پرته چې هم داسلامي امارت مجاهدینو، مسؤلینو او عامو افرادو ته داصلاح ، اطمنان اوافتخار پیغام لاره او دا حقیقت یې په ډاګه کړ چې عالیقدر منصور صاحب څومره دمجاهدینو کړو وړو، ته متوجه او دهغوئ ګام په ګام کړنې څاري اوپه عین حال کې څومره لورینې اومهرباني پرې لري ، دهغه ترڅنګ خپل افغان مېړني ولس ته ترکومې اندازې معتقد په دردونویې دردمند ، په کړاویې کړیدلی اوپه غم او خوښۍ کې ځان ورسره شریک بولي .

افغان ولس به هیڅ<br>ري هم دخپل مشفق امیر دومره اخلاص اوپاملرنه چې دوینا زیاتره جملې او کرښې یې دولس په قدرداني او ستاینه بنا او خپل مجاهدین باربار له هغوسره غوره چال چلند ته رابولي او دهغوئ دهوسايي فکر اوسوچ ورسره دي هیر اوله یاده به یې ونه باسي .

تل اوسرلوړی دي وي ، دافغانستان اسلامي امارت اوژوندي دي وي دالله دلاري هغه ستر مجاهدین اوداسلام رښتیني خادمین ، چې تګلاره او سرچینه یې دالله تعالی دغه فرمان دی چې ( محمد رسول الله والذین معه}:أي أصحابه رضوان الله علیهم. }أشداء على الكفار} : أي غلاظ لا یرحمونهم رحماء بینهم} : أي متعاطفون متوادون كالوالد مع الولد.

یعني ، محمد رسول الله ، او د هغه مبارک ملګري اصحابان رض، دالله ددین ددښمنانو په مقابل کې سخت ، قاطع ، خو دمؤمنانو په مقابل کې مهربانه ، حلیم او داسې چلند لري لکه پلار یې چې له خپل زوی سره لري .

والسلام علیکم ورحمت الله وبرکاته !



# هغه عالم چې رحلت يې په رښتيا د عالم مرګ و

حسن مومند

له نړۍ نه دهر ديني عالم رحلت اوتـرې دټولنې بې برخې کېدل دمسلمانانو لپاره دغم اودټولنې لپاره دتاوان خبره وي خوپه ديني عالمانو کې ځينو ته بياالله تعالی دومره لوړمقام ،لوی علم ، داسلام اومسلمانانولپاره د خدمتونو کولو وسيع ميدان ، دديني علومواشاعت لوېه موکه دمسلمانانو دقيادت لوړاستعداد اوپه اسلامي ټولنې کې سترمحبوبيت ورکړی وي چې وفات يې هرچاته عملاً دعالم مرګ ښکاري اوټول علماء ،مدارس ،مذهبي مراکز ،ديني تحريکونه اواسلامي نهضتونه ورباندې يتيمان شي.

شيخ القرآن والحديث دکتورشيرعلی شاه المدني رحمه الله تعالی داسلامي نړۍ همداسې يوسترعلمي شخصيت و نووفات يې په رښتيا چې دعالم مرګ دی .

هغه ددارالعلوم حقانيه اکوړه خټک په نوم داسلامي نړۍ دهغې سترې جامعې شيخ الحديث اوترټولو مشراستاذ و چې يواځې ددوره حديث په يوصنف کې يې دطالبانوشمېر کابويونيم زروته رسېږي چې دابه دټولې نړۍ په سطحه په يوې درسگاه يعنې يو صنف کې ترټولولوړه شمېره وي.

هغه ته الله تعالی له پيله دومره لوړعلمي مقام ورکړی وچې په ډېرې کم عمرۍ کې چې لا يې ږيره هم نه وه راغلې دحقاني نه دفراغت سره سم همدلته دسترمحدّث حضرت مولانا عبدالحق رحمه الله په حکم په همدې جامعې کې استاذ شوی وچې زياتره شاګردان به دده نه په عمر کې مشران وو.

سره له دې چې دمتحده هندوستان په سطحه دلوی عالم ، عظيم مربي ، کامل ولي اوسترمحدث حضرت مولانا عبدالحق دشفقت ترسيوري لاندې ورته دهېوادپه مقبولې مشهورې اولويې جامعې کې استاذي نصيب شوی وه چې دا دهغه لپاره دسترې خوښۍ اولوی افتخارخبره وه ؛ دمفتي محمد حسن اومولانامحمدادريس کاندهلوي رحمهماالله تعالی په ډېردلويومحدثينو نه يې هم په لاهور کې احاديث ويلي او ورته ددوئ دشاګردۍ شرف په برخه شوی و؛ دشيخ القرآن مولاناغلام الله خان ،حافظ الحديث حضرت مولانا عبدالله درخواستی اوشيخ التفسيرحضرت مولانااحمدعلي لاهوری رحمهم الله په ډېردلويوجبالونه يې هم دقرآن عظيم الشان ترجمه اوتفسير ويلی وخودهغه دعربۍ ژبې ، درسول الله داحاديثواوقرآني علومو سره دومره زياته مينه وه چې وريسې ترمديني منورې ولاړ اودکليې نه پس يې چې ماجستيراوبيا په تفسير کې دکتورا واخسته نو ايله ترې راستون شو.

هغه دنړۍ دګوټ ګوټ نه دراغلو جداجدا کلتورونو ،ژبو ،رنګونو ، لباسونواو مزاجونو لرونکومحصلينو اود مختلفو مزاجونواونظرياتواوپه فروعو کې دجلا جلا رايولرونکواستاذانوسره دمديني منورې په جامعه اسلاميه کې دکلې ،ماسترۍ اودکتورا دادومره اوږده زمانه تېره کړه خوهغه پدې ټولې اوږدې زمانې کې مثالي استقامت وښود اوپه يولحاظ دهغه تجدد اوپه فروعي مسائلو کې دتشدد ښکار نه شودکوم تجدداوتشدد چې دلته زياتره تلونکي ښکار کېږي ؛ هغه رحمه الله تعالی دطالبۍ داټوله زمانه صورةً اوسيرةً دخپلواستاذانواواسلافوپه اتباع اودفاع کې تېره کړه ؛ نه يې دځينو ناپوهانوپه څېرتصوف ګمراهي وګڼله ؛نه يې دسلوک سمه لار پرېښوده ؛ نه يې دخپل مذهب او خپلې فقهي اتباع ترک کړه ؛نه يې دساداتواو کرامو امامانواوحقومذهبونوپه اړه دچا بې ادبي وزغمله اونه يې هورې پدې اړه ادنی مداهنت وکړ بلکې په جامعه اسلاميه کې به يې ښه په مېړانې دځلوراړوفقهي مذهبونو؛ دټولواسلافو اوخصوصاًدامام ابوحنيفه رحمه الله تعالی نه دفاع کوله ؛ داسې دفاع چې نه له هغه وړاندې چا کړې وه اونه چاوروسته وکړای شوه چې دهغه مهال دجامعې استاذان اومحصلين ددې خبرې عيني شاهدان وو.

حضرت مولانا صیب په جامعه اسلامیه کې ددکتورانه پس په ډېرې اسانۍ دهېواد اواسلامي نړۍ په دولتي پوهنتونونو کې استاذی کولای اوله دې لارې هره میاشت په سونوزره روپۍ ترلاسه کولای شوې خوهغه رحمه الله تعالی چې ټول ژوند یې ددین په خدمت کې تېرشواوتل به یې معنویت ته په مادیاتوترجیح ورکوله یوپوهنتون ته هم نه ولاړ ؛بېرته دخپل طالب دروزنې اودعلم په ډګرکې یې دخدمتونولپاره خپرې مدرسې ته راغلونو الله تعالی هم دومره لوړمقام ورکړ چې دهېواد هرې لویې مدرسې دعوت ورکولواو هڅې یې کولې چې دتدریس لپاره یې راولي. هغه چې دمدینې منورې مبعوث ونوپه کراچۍ کې دیوې مدرسې مهتمم دپاکستان دهغه مهال ولسمشر غلام اسحاق خان نه غوښتي ووچې دسعودي ددولت له لارې دې دعمر ترپایه ددکتورصیب شتون دده په مدرسې کې حتمي کړي.

داچې کراچۍ نړیوال شهرت لري اودپاکستان ترټولوستر صنعتي اوتجارتي ښار دی نوترڅنګ یې دعلم په ډګرکې هم ترټولووړاندې دی ؛ دلته ډېرې سترې مدرسې اوعلمي مراکز دي ؛پکې دعلم اوعلماءوډېر قدر دی اوپه ډېرې اسانۍ پکې بااستعداده علماء ښه شهرت مومي اولوړمقام ورپه برخه کېږي نویوځل چې ورته څوک راشي بیاترې دتلونه وي خوکله چې دشیخ رحمه الله تعالی نه دجهادسنګرونوته څېرمه سرحدي ښارګوټي میرانشاه کې دمولوی جلال الدین حقاني حفظه الله په منبع العلوم مدرسې کې دتدریس غوښتنه وشوه نودجهاد اومجاهدینوسره دډېرې زیاتې مینې له امله شیخ رحمه الله په ډېرې خوشالۍ دکراچۍ پرېښودلواوخپل میرانشاه راتللوته تیارشو اوترهغې یې پکې تدریس وکړ ترڅوچې په دارالعلوم حقانیه کې دسترفقیه مفتي محمدفرید رحمه الله تعالی په تلویوه لویه تشه رامنځته شوه اوددې تشې ډکېدولپاره له دکتورصیب پرته بل څوک ونه موندل شو.

هغه دتدریس اوتقریر دمیدان ډېرلوی شهسوارو؛دژبې فصاحت یې په ټول هېواد او سیمې کې مشهورو په عوامي اجتماعاتوکې به په عام فهمه ، ډېرې ساده او ولسي ژبې غږېدلواودپښتوسوچه اصطلاحاتو ؛امثالو ،متلونو اوشعرونو به یې ویناته ډېرحسن وربښلو؛ دعربۍ ،فارسۍ ،پښتو او اردوژبودشعرسره یې هم ډېره مینه وه اودیادوژبوپه زرونوشعرونه ورته یاد وواوپه یویومجلس کې به یې غونډې غونډې قصیدې ویلای شوې .

سره له دې چې هغه دعالیه اوآلیه علوموسمندرو ؛ داسلامي نړۍ په ترټولومقبول پوهنتون کې یې لوړې زدکړې ددکتورا ترهغه حده رسولې وې چې پورته ترې درسمیاتوپه نړۍ کې نورې زدکړې نشته ؛ په یوې سترې جامعې کې ترټولومشر استاذ و؛ دخپل وخت اعلی مقررواودجهادي ګڼوحرکتونوخپل روحاني مشرګڼل کېده خوسره ددې ټولوکمالاتوهم هغه یومنکسرالمزاج شخصیت و؛ ډېرخاکسارانسان و؛ په طبیعت کې یې الله تعالی ستره عاجزي ایښې وه ؛دغروراوتکبربوی هم پکې نه و؛ دډېرو نرمو اوعالي اخلاقوڅښتن و؛هرچاسره به په ورین تندي مخامخ کېدلو؛ دهرمسلمان په وړاندې یې تل دروازې خلاصې وې ؛غریب ملا ،غریب طالب اوغریب مجاهد به ورسره هروخت کتلای اومشورې به یې ترې اخستلای شوې .

جهادي مشرانوته به یې تل دولس سره دښه سلوک توصیه کوله ؛په جهاد کې دبې ځایه تشددسخت مخالف و؛ دبې ګناه انسانانودوژلواوزرولوسره یې ډېرنفرت لاره اودابه یې داسلام اوجهاد دبدنامۍ لوی سبب ګڼلو اودمسلمانانواوخصوصاًجهادي حرکتونوپه خپلمنځي اختلافاتوبه سخت خفه کېدلواوتل به یې ویل چې دسواداعظم اودمسلمانانودلویې ډلې نه مه جداکېږئ ګینې دنیا اوآخرت به موتباه شي .

دمسلمان ملت یووالی اودواحدقیادت لاندې راټولېدل یې لویه هیله وه اوددې لپاره به یې ډېرې دعاوې اوهڅې کولې ؛ اعلاء کلمة الله اودشریعت نفاذ یې دژوند یواځنی ارمان و ؛داخلاص او وفاپیکرو ؛ زهد ،تقوی اوددین سره مینې کې یې څوک سیال نه و .

حق پالنه ، دحق لارې ملګرتیا، دهرجبراوظلم په وړاندې په کامل جرأت دحق اظهار ، په حقې خبرې ټینګ ودرېدل یې مثالي واوپدې لارکې دهیڅ اودنړۍ دیوطاقت نه وېرېدونکی نه و؛ دامریکایي اشغال په ړومبوورځوکې به چې دجهاد اویوعام مجاهد نوم اخستل هم جرم ګڼل کېدلو ډاکترصیب به امیرالمؤمنین ملامحمدعمر مجاهد شیخ اسامه بن لادن رحمهما الله تعالی اومولوي جلال الدین حقاني حفظه الله تعالی ته په هرې جلسې او دبخاري شریف دهرې ورځې ددرس په پای کې په لپولپو دعاګانې کولې ؛ دزرونویالسګونوزروتنانوترمخه په عامولویوغونډواو اجتماعاتوکې به هغه په خپلې هرې ویناکې دجهاد دیادو درې واړوقائدینو، اسلامي امارت اوطالبانوستاینه اودمحبت اوعقیدت نه په

ډ کوتوروغوره یادونه کوله اوتل به یې داویل چې نه یواځې زموږبلکې دټولې نړۍ دامېدسترګې دطالبانواسلامي تحریک ته دي .

رښتیا داده چې دجهادسره دمولاناشېرعلي شاه صیب مینه په بلې هرې مینې غالبه وه اودامینه تش په نامه مینه نه وه بلکې دروسانوپرضد دافغانستان دجهاد دپیل نه ترمرګه دهغه ټول ژوند ددې مینې ژوندۍ نمونه وه ؛دهغه عواموخواصوته یوه وینا اوبیان به هم دجهاد دتائید اوترغیب نه خالي نه و؛ خپل هرشاګردبه یې په جهادي روحیه روزلواوپخپله یې هم ځان



دافغانستان جهادکې دعملي شرکت نه بې برخې کړی نه و.

هغه په کامل زړورتوب ځکه دحق اظهار کاوه اوله یوطاقت نه هم نه وېرېدلوچې ټول ژوندیې دالله تعالی په طاعت کې تېرشوی او مرګ ته یې کامل چمتووالی نیولی و.

داسلامي نړۍ پر اسلامي هېوادونو دشرعي نظام نفاذيې ډېرلوی ارمان و، په کوم هېوادکې به که اسلامپالوته کوچنی بریالیتوب هم په برخه شوډېر زیات به پرې خوشالېدلو او پر اسلامي نړۍ دمسلطو هغو حاکمانو نه یې سخت نفرت کاوه کومو چې اسلامي نړۍ سیکولرزم لورته روانه کړېده اودامریکا دراضي کولوپه موخه له شرعي حدودو اوړي اوددین احکام ترپښولاندی کوي .

متأسفانه چې داسلامي نړۍ ددې دومره سترشخصیت په اړه دپاکستان رسنیوډېره لویه جفاوکړه وفات دجمعې په ورځ رامنځته شوی ودهفتې په ورځ چې جنازه وه دپاکستان په اخبارونوکې یې دوفات خبرپه لویوټکونه وخپورشوی اونه هم تلویزونونودې لویې سانحې ته په خپلوخبرونوکې ځای ورکړی و؛ دې رسنیو دجنازې دوخت داعلانولوزحمت هم نه وکړی خوبیاهم دانسانانو داسې لوی سېلاب وچې داسلام آباداو پېښور ترمنځ غزېدلي دواړه عمومي سرکونه ترپنځوشپږو کیلومتروپورې له انسانانوډک شوي وو اودمسلمانانو دستر ازدحام له امله ترساعتونوپېدې سرکونودترافیکو تلل راتلل بند وو؛ دانسانانویوداسې سترسمندروچې خلکوته یې دعرفات میدان رامخې ته کړی واوټولوپه یوه خوله ویل چې دومره ستره جنازه نده لیدل شوې ؛ پدې هېوادکې ډېرستراشخاص وفات شوي خوپه تېرو دوه درې لسیزوکې دیوشخص جنازې ته هم دومره مسلمانان نه وو راغلي څومره چې دشیخ صیب جنازې ته راغلل.

سره له دې چې دانسانانویوعظیم ازدحام وخوبیاهم نه څوک دجنازې نه برخې شواونه کومه کوچنۍ بدنظمي رامنځته شوه چې دادخدای په نزد دهغه دلوی مقام اومحبوبیت لویه نښه وه ؛ کله چې دفن شو دقبرخاوروهم فضامعطره کړی او دهغه دلوی مقام اوولایت شهادت یې ورکولو.

هو! هغه دخدای محبوب بنده وځکه یې دمسلمانانوپه زړونوکې دهغه سره داسې بې کچه مینه اچولې وه چې نېږدې سیمې خونېږدې وې له کراچۍ ،بلوچستان اوافغانستان نه یې هم جنازې ته هغه تنان راغلي ووچې دده رحمه الله تعالی سره یې داستاذۍ اوشاګردۍ تړاو نه و.

دالله تعالی نه دهغه لپاره په آخرت کې لوړې مرتبې اوپه حق پرستوعلماء ودهغه دتشې ډکول غواړو .



# اعداد
## یو شرعي مسؤولیت او جهادي ضرورت

عبدالهادي «مجاهد»

په اسلام کې چې د جهاد عبادت ته (ذورة سنام الاسلام) ویل شوي او د لوړې مرتبې عبادت ګڼل شوی دا لـه دې امله ده چې پـه جهاد د اسلام ساتنه کېږي، د جهاد پـه وسیله هغـه خنډونـه لیرې کېږي چې د الله تعالی بنـده ګـانو تـه د حـق د دعـوت د ورسـېدلو مخنیوی کېږي، د هغـه پـه وسیله د ظالمـانو او مفسـدینو د ظلم او فساد مخه نیول کېږي، او د همدې جهاد پـه وسیله د اسلامي امت معنوي ارزښتونه او ځمکني سرحدونه خوندي کېږي.

خو جهاد په هغـه وخت کې خپل پوره افادیت ښئي چې پـه شرعي ډول ترسره شي، او په پوځي، معنوي او روحي لحاظ د هغـه لپاره پوره تیاری ونیول شي.

که له یوې خوا الله تعالی مسلمانانو ته د کفر او فتنې په مقابل کی د جهاد د کولو امر کړی او فرمایلي دي: (وَقَاتِلُوهُمْ حَتَّىٰ لَا تَكُونَ فِتْنَةٌ وَيَكُونَ الدِّينُ كُلُّهُ لِلَّهِ) الأنفال/۳۹. (تر هغه د کافرانو پـه خلاف وجنګېږئ چې فتنه (شـرک) لـه منځـه ولاړ شي او یـوازې د الله دین حاکم شي). نو له بل لوري یې مسلمانانو ته د جهاد لپاره د تیاري د نیولـو او د اعـداد د فریضې د ادا کولـو امر هـم کـړی او فرمـایلي یـې دي: (وأعدوا لهم مااستطعتم من قوة و من رباط الخیل ترهبون به عدوالله وعدوكم وآخرين من دونهم لاتعلمونهم الله يعلمهم) الأنفال/۶۰.

ترجمه: (څومره چې کولی شئ د کافرانو د مقابلې لپاره قوت او زین کړي اسونه تیار کـړئ چې د الله دښـمنان، خپـل دښـمنان او او نور هغه دښمنان پرې ووېروئ چې تاسې یې نه پېژنئ الله یې پېژني).

دا چـې د اسـلام دیـن د الله تعـالی ورسـتی حـق دیـن دی او مسلمانان یې د نړۍ خلکو تـه پـر رسولو او د هغـه د رسولو پـر لاره د پرتو خنډونو پر لیرې کولو مکلف دي نو ځکه خو باید دا امت د ټـل لپاره یو قوي، مستعد، او متحرک امت وي، او د دیـن د رسـولو او لـه هغه څخه د دفاع په لاره کې باید د هر ډول مادي او معنـوي وړتیـاوو درلودونکی او د هغه لپاره د قربانۍ ورکولو ته تیار وي.

که له یوې خوا مسلمانان انسانانو تـه د الله تعالی د دیـن پـه ور رسولو مکلف دي او د دی کار لپاره له تېرو څه باندې څـوارلس سوه کلونو په مسلسل جدوجهد کې راروان او لـه ډېرو لوړو او ژورو راتېر شوي او د عروج او تنزل پړاونه یې وهلي دي نو له بل لوري د شیطان پلویانو او له الله تعالی سره پـه دښـمنۍ اخته خلکو هـم د ټـل لپـاره د اسلام د خپرېدو د مخنیـوي او د مسلمانانو د لـه منځـه وړلـو او یـا کمزوري کولو لپاره خپلې هر ډول هڅې کړې او په هره زمانه کې یې خپلې ټولې مادي او معنوي وړتیاوې او وسایل پـه کار اچولي او د حق په مقابل کې د قوي جبهې د جوړولو په مقصد یې یو بـل تـه سره پـه خپلو کې لاسونه ورکـړي دي، او د مسلمانانو پـه خـلاف یـې لـوېې او اوږدې جګړې کړې دي چې د فارسیانو، رومیـانو، د اروپـا صلیبي او استعماري جګـړې، د کمـونیزم د خپـراوي لپـاره د شـوروي اتحـاد جګړې او بالآخره د دیموکراسۍ د کفـري نظریـې او نظام د خپرولو لپاره د امریکا او ټول غرب اوسنۍ روانه جګړه یې واضح مثالونه دي.

د رسول الله صلی لله علیـه وسلم اصحابانو او د هغوئ تـابعینو هم د اسلام د خپرولو په لاره کې جهاد او اعداد تـه دومـره لویـه توجـه کړې وه چې د مادي وسائلو او د حمل او نقل د قوي او لویـو ذرائعـو لـه نه شتون سره سره یې بیا هم د اسلام پیغام له جزیرة العرب څخـه د اروپا تر غربه او د هنـد، چیـن، روسـي او قوقـاز ترهېوادونـو ورسـاوه. هغـوئ د خپلـي زمـاني بهتـرین تـوره وهـونکي، غـره ختـونکي، صحراپیمایان، اسپ سواره، نښه ویشتونکي، لامبو وهونکي او د نورو رزمي استعدادونو لرونکي ول. هغـوئ پـه اعداد او تمـرین کـې داسـې رالوی شوي ول چې عسکریت او د رزمـي وړتیـاوو درلـودل یـې نـور د ژوند بنه ګرځېدلي وو.

صـحابه کرامـو رضـي الله عـنهم بـه لـه جهاد او اعـداد څخـه کنبیناستل هلاکت ګڼـه، ځکه چې الله تعالی پـه قران کـریم کـې دې کنبیناسـتلو تـه (تهلکـه) ویلي وو او هغوئ یـې ورڅخـه منع کـړی وو: (ولاتلقوا بأيديكم إلى التهلكة) یعنـې (د جهـاد اعـداد او ربـاط پـه

پرېښودلو او د دنیا په کارونو د پوره مصروفېدلو له امله ځان په هلاکت کې مه غورځوئ). ابو ایوب انصاري رضي الله عنه هم صحابوؤ او تابعینو ته د دې آیت همدغه تفسیر کړی وو.

د اعداد شرعي دلائل:

الله تعالی په سورة الأنفال کې مسلمانانو ته له دښمن سره د مقابلې لپاره د هر ډول اعداد او د مطلوب قوت د برابرولو امر کړی دی، الله تعالی فرمايلي: (وأعدوا لهم مااستطعتم من قوة و من رباط الخيل ترهبون به عدوالله و عدوكم وآخرين من دونهم لا تعلمونهم الله يعلمهم) الأنفال/۶۰.

ترجمه: (څومره چې کولی شئ د کافرانو د مقابلې لپاره قوت او زین کړي آسونه تیار کړئ چې د الله دښمنان، خپل دښمنان او نور هغه دښمنان پرې ووېروئ چې تاسې یې نه پېژنئ الله یې پېژني).

د تفسیر علماء وايي چې پدې آیت کې د (قوة) لفظ نکره دی، او نکره عام وي او په هر ډول قوت باندې دلالت کوي.

د جهاد لپاره اعداد نه کول په قرآن کریم کی د منافقانو له صفاتو څخه ګڼل شوي دی، الله تعالی د جهاد لپاره د منافقینو د اعداد د نه کولو په اړه فرمايي: (وَلَوْ أَرَادُوا الْخُرُوجَ لَأَعَدُّوا لَهُ عُدَّةً وَلَٰكِن كَرِهَ اللَّهُ انبِعَاثَهُمْ فَثَبَّطَهُمْ وَقِيلَ اقْعُدُوا مَعَ الْقَاعِدِينَ)التوبة/ ۴۶.

ترجمه: (که هغوئ (منافقانو جهاد) ته د وتلو اراده درلودی نو تیاری به یې ورته نیولی وو، خو د هغوئ راپورته کېدل د الله خوښ نه وو، نو ځکه یې سست کړل، او ورته وویل شول چې له کښېناستونکو سره کښېنئ).

رسول الله صلی الله علیه وسلم په خپلو احادیثو کې مسلمانان د جهادي اعداد بېلابېلو ډولونو ته تشویق کړي دي او هغوئ یې اسپ سوارۍ، نښه ویشتلو، لامبو زده کولو او د پوځي وسائلو جوړولو ته هڅولي دي.

نن چې په نړۍ کې کافران د جنګ، سیاست، تعلیم او اقتصاد په ډګرونو کې برلاسي شوي او هره خوا یې په اسلامي نړۍ کې پر مسلمانانو او نورو ولسونو او مجاهدینو حملې دي سبب یې دا ندی چې هغوئ پرحقه دي، او یا دا چې د الله توفیق او نصرت یې په برخه دی. بلکه اصلي سبب یې دا دي چې هغوئ د جګړو لپاره پوره اعداد او منظم پلانونه لري، او د جګړه ییزو مهارتو او پوځي صنعت په ډګرونو کې یې پوره کار کړی دی، او لوی زمکني، هوايي او سمندري پوځونه او پوځي وسائل یې جوړ کړي دي، او هم هغوئ په رواني او فکري لحاظ خپلو پوځیانو ته پوره روزنه ورکوي.

کفار نه یوازې دا چې د بدني او فکري اعداد او د پوځي وسائلو او وسلو په جوړولو کې د خپلې برلاسۍ لپاره مسلسلې او په خپلو منځونو کې هم آهنګۍ هلې ځلې کوي، بلکې په ټول توان او د هر ډول توطیو او فشارونو په استعمال د دې لپاره هم په سیمه ییزه او هم په نړیواله سطحه کوښښ کوي چې مسلمانان له عسکري وړتیاوو او د پوځي صنعت له درلودلو محروم کړي، ترڅو یا د خپلې کمزورۍ له امله له منځه ولاړ شي، او یا هم د کفارو قوت او د هغوئ شرطونو ته غاړه کېږدي.

د اسلام دښمنان او له مسلمانانو سره په جګړه کې اخته اوسنی نړیوال صلیبي ایتلاف او د هغه فکري او اقتصادي ملګري او پر اسلامي نړۍ د هغوئ له لوري تپل شوي حکومتونه او سیاسي احزاب ټول له یوې مخې د خپلې زورورې میډیا، تعلیمي نصابونو، فرهنګ او ادبیاتو، ټولنیزو رسنیو او نورو اجتماعي او فکري سازمانونو له لارې کوښښ کوي چې د اسلامي امت ځوانان او راتلونکي نسلونه له جهادي اعداد او د وسلې له استعمال څخه متنفر کړي، او د هنر، عدم تشدد د مبارزې، نړیوالتوب او نورو واردو شویو فکري ګمراهیو له لارې یې د ذلت او بې غیرتۍ په ژوند او د کفارو د اهدافو لپاره په کار کولو قانع او مصروف کړي.

د دې لپاره چې له اسلام سره په جګړه کې اخته اوسنی نړیوال صلیبي ایتلاف او د هغه محلي ملګري د اسلامي نړۍ ځوانان د جهاد او دفاع له میدانونو لیرې وساتي او په بېهوده مصروفیتونو یې مصروف کړي، نو په منظم شکل یې هغوئ د جنون تر حده په بېلابېلو سپورټونو لکه کرکټ، فوټبال، د میراتون په منډو، د باډۍ د ښکلا په کلپونو، موسیقۍ، ګډاوو، د ښځو او نرو په اختلاط، په رومانټیکې شاعرۍ، عشق او عاشقۍ، غربي ډوله فیشنونو او نورو بیهوده مصروفیتونو اخته کړي دي، او غربي دولتونه او موسسې د هغوئ لپاره د ځوانانو کلپونه، د لوبو میدانونه، تیاترونه، خارجي سفرونه، تش په نامه د ځوانانو پارلمانونه او کنفرانسونه، ادبي بهیرونه او د خوشګذرانۍ بنډارونه او د ماډلنګ ننداریونه جوړوي، او په ملیونونو ډالر وربانډې پدې مقصد مصرفوي چې د امت ځوانان له علم، دعوت، جهاد، صنعت، زراعت، مسؤولیت پېژندنې او له دین او وطن څخه د دفاع له کاره راوګرځوي، او د

ریښتیني اتلولۍ له ګټلو څخه یې د کرکټ، ګډاوو، سندرو، او فلمونو په اتلولۍ تېرباسي.

د دې لپاره چې د پردیو لخوا تپل شویو حکومتونو له یوې خوا نور ځوانان هم د جهاد او دفاع له سنګرونو لیرې ساتلي وي، او د پردیو فرهنګونو په خپلولو یې مصروف کړي وي، او له بلې خوا یې له لویو ستونزو د ولسونو پام بل لوري ته اړولی وي په لویه پیمانه بېهوده مصروفیتونو ته د ځوانانو د ورتشویقولو پر پروګرامونو درانه مصرفونه کوي او د داسې لوبغاړو او سندرغاړو استقبال ته ساده ولسي خلک له ډولونو او سورنیو سره لویو لارو او بازارونو ته راوباسي چې له لهو او لعب پرته یې بل څه نه وي تر سره کړي، خو د غرب پلوې مېډیا له لوري اتلان بلل کېږي.

د جهادی اعداد ډولونه :

لکه څنګه چې جهاد یو ایماني، عسکري، سیاسي او اجتماعي عمل دی او نتائج یې هم د اسلامي ټولنې پر ایمان، پوځي غلبې او شکست او د ټولنې په سیاسي او اجتماعي وضعیت مرتبیږي، نو همدارنګه باید اعداد هم ورته پدې ټولو ډګرونو کې ونیول شي. او که چېرې په دې ټولو ډګرونو کې د جهاد لپاره اعداد ونه نیول شي نو هر وخت د دې وېره شته چې یا دې جهاد او مجاهدین د دښمن په مقابل کې مغلوب شي، یا دې جهاد په فساد او طغیان بدل شي، او په نتیجه کې دې یې یو فاسد او مستبد نظام رامنځته شي، او یا دې هم دښمن په دې وتوانیږي چې د جهاد د لارې لارویان د خپلو پټو او ښکاره دسیسو او توطیو په نتیجه کې په خپل صف کې ودروي، چې په تاسف سره داټول حالتونه زمونږ په جهادي بهیرونو کې ولیدل شول.

نو د دې لپاره چې منفي تجربې بیا بیا تکرار نشي، د جهادي اعداد لپاره باید په لاندې ډګرونو کې ډېر کار وشي.

۱ – ایماني او شرعي اعداد :

مخکې تر دې چې مجاهد ته ټوپک په لاس ورکړ شي هغه باید د ایماني اعداد له مرحلې تېر شي. په ایماني اعداد کې باید مجاهدین پدې معتقد شي چې :

الف : جهاد یو شرعي عبادت دی چې د الله له لوري پر مسلمانانوفرض شوی دی : (کتب علیکم القتال وهو کره لکم وعسی أن تکرهوا شیئا وهو خیر لکم وعسی أن تحبوا شیئا وهو شر لکم والله یعلم وأنتم لا تعلمون)البقرة/۲۱۶.

ترجمه : (پر تاسې جنګ فرض کړای شوی دی که څه هم تاسې یې نه خوښوئ، شاید تاسې یو شی بد وګڼئ خو هغه به ستاسې لپاره غوره وي، او شاید تاسې به یو شی ښه وګڼئ خو هغه به ستاسې لپاره شر وي، الله ښه پوهېږي او تاسې نه پوهېږئ).

جهاد نه کومه سیاسي مبارزه ده، نه د آزادۍ لپاره جنګېدل دي، نه کوم ولسي پاڅون دی، او نه هم د مال، تنخوا او یا نورو امتیازاتو په مقابل کې جنګېدل دي. بلکې جهاد یوازې د دې لپاره جنګېدل دي چې د الله تعالی کلمه دې لوړه شي، شریعت دې نافذ شي، مسلمانان دې نورو خلکو ته د اسلام پیغام او دعوت ور ورسولی شي او د ظالمانو او کافرانو له ظلم او تجاوز څخه دې خوندي وي.

ب : لکه څنګه چې په اسلام کې نورعبادتونه خپل شروط، آداب، او احکام لري همدارنګه جهاد هم خپل شروط، آداب، احکام او خپلې تقاضاوې لري چې باید وپېژندل شي او مراعات شي. که چېرې په جهاد کې د جهاد خپل شروط، آداب، احکام، او د هغه تقاضاوې پوره نشي نو بیا جهاد یو شرعي عبادت نه پاتې کېږي، بلکې د یوې ورانوونکې جګړې حیثیت او شکل غوره کوي چې د الله تعالی د رضاکولو لپاره نه بلکې د نورو سیاسي، قومي او یا اقتصادي مقاصدو لپاره تر سره کیږي.

نو په کار ده چې مجاهدین د جهاد پر فقه وپوهول شي، او د جهاد د مشروعیت او فرضیت له دلائلو خبر کړی شي، د قتال، فرار، غنیمت، شهادت، طاعت، رازساتنې او ولاء او براء احکام ورته معلوم شي. همدارنګه د نیت او عمل اصلاح ته متوجه کړای شي، له الله تعالی، د هغه پیغمبر صلی الله علیه وسلم او د اسلام له مبارک دین سره مینه یې په زړه کې ځای کړای شي، د دنیا او دنیاوي خوندونو په اړه د زهد او بې رغبتي او د آخرت د نعمتونو په اړه تلقین او ترغیب ورته وشي. د ذکر، تلاوت، تزکیة النفس، توکل علی الله، نېکو اخلاقو، د مسؤولیت د پېژندنې صفات ورکې پیدا کړل شي، او د امت د علیا مصالحو په خاطر له خپلو شخصي مصالحو د تېرېدنې احساس ورکې راوستل شي.

مجاهدینو ته د دې ورښوول هم ضروري دي چې د جهاد د ډګر کې له حلالو او حرامو خبر شي، د دعوت، امر بالمعروف او نهي عن المنکر او د الله تعالی د حدودو د ساتلو استعدادونه ورکې وروزل شي. که مجاهدینو ته دغه ډول ایماني اعداد ورکړ شي نو په هغه وخت کې به بیا یو مجاهد په حقیقي معنی مجاهد وي، او هغه صفات به ورکې راځي چې الله یې د مجاهدینو په هکله یادونه کړې ده چې فرمایي : (التَّائِبُونَ الْعَابِدُونَ الْحَامِدُونَ السَّائِحُونَ الرَّاكِعُونَ

السَّاجِدونَ الآمِرُونَ بِالْمَعْرُوفِ وَالنَّاهُونَ عَنِ الْمُنكَرِ وَالْحَافِظُونَ لِحُدُودِ اللّهِ وَبَشِّرِ الْمُؤْمِنِينَ)التوبة ۱۱۲. ترجمه: (هغوئ توبه کوونکي، عبادت کوونکي، ثنا ویونکي، د الله په لار کې وتونکي، رکوع او سجده کوونکي، پر نیکیو امر کوونکي او له بدیو منع کوونکي او د الله د حدودو ساتونکي دي، او (ای پیغمبره) مؤمنانو ته د خوښۍ زیری ورکړه).

ج: د ایماني اعداد په لړ کې دا هم ضروري ده چې مجاهدین د خپلې قضیې په حقانیت وپوهولی شي، د دښمنانو او مرجفینوله لوري پر راپورته کړل شویو شبهاتو وپوهول شي او د هغو پر شرعي او معقولو ځوابونو آګاه کړل شي. ځکه چې شبهې، وسوسې او تشویشونه هغه څه دي چې د مجاهد عزم سستوي، د خپلې قضیې په حقانیت یې شکمن کوي، او بالآخره یې له جهاده منصرف کوي، چې په عسکري اصطلاح کې همدې ته رواني (روحي) جګړه ویل کیږي.

همدارنګه باید مجاهدین د جهاد په خلاف له پټو او ښکاره توطیو خبر کړل شي، د دښمن داخلي او خارجي ملګري او له هغه سره متعاون حکومتونه، ارګانونه او مؤسسات ور وپیژندل شي، او هغه مطبوعاتي او اقتصادي مؤسسې، مفکرین، لیکوالان، رسنۍ او نور مؤثر جهتونه هم ورته معرفي شي چې د جهاد او مجاهدینو په خلاف منفي تبلیغات کوي او د دښمن تله درنوي. د دغو جهتونو پیژندل او د هغو په اړه مناسب اقدامات ځکه ضروري دي چې نن ورځ د اسلام دښمنان خپله اتیا فیصده جګړه د همدغو جهتونو له لارې کوي، او یوازې شل فیصده جګړه د پوځي وسائلو په استعمال کوي.

د ایماني اعداد په لړ کې د هغو مطبوعاتي وسائلو او نشراتو درلودل هم ضروري دي چې له جهادي قضایاوو دفاع کوي، مجاهدینو ته حقائق روښانه کوي، خلکو ته د جهادي پر مختګونو او د مجاهدینو د بریاوو خبرونه رسوي، د دښمنانو د تبلیغاتو او دسیسو ځواب وایي، په جهادي صف کې ایماني احساسات پالي او ځپاند یې ساتي، او د حق غږ پورته کوي.

د ایماني اعداد په لړ کې پدې خبرې د مجاهدینو پوهول هم ضروري دي چې جهاد کومه سیاسي یا وطني جګړه نه ده چې په سولې، متارکې، سیاسي جوړجاړي او یا دي له دښمن سره په کوم ډول پخلاینې پای ته ورسیږي. بلکې جهاد هغه جګړه ده چې د کفر تر زوال او د الله تعالی د کلمې تر پوره لوړوالي، د ژوند په ټولو چارو کې د دین د حاکم کیدلو او پر زمکه د کفر او شرک تر نه پاتې کیدلو به دوام لري.

په جهادي نظریه کې له دښمن سره په جګړه کې تکتیکي اوربند او موقتـه هدنـه شتـه، خو دائمي سوله او د نړۍ له کفري هیوادونو سره د سوله ییز ګډ ژوند نظریه وجود نه لري.

په ایماني اعداد کې د مجاهدینو فکر پر دې خبره هم جوړول ضروري دي چې جهاد په کومې سیاسي جغرافیې پورې نه محدودیږي، او نه هم سیاسي سرحدونه په امت کې د جهاد د فرضیت مانع ګرځي. بلکه د جهاد عیني او کفایي فرضیت د مسلمانانو په ضعف او قوت پورې اړه لري.

بدني او عسکري اعداد:

په جهادي اعداد کې د شرعي او ایماني اعداد تر څنګ اصلي او مهم اعداد بدني او پوځي اعداد دی. بدني اعداد دا دی چې مجاهدین باید جسماً داسې تمرین شي چې په هر ډول حالاتو او هر ډول اراضي کې د تحرک او مانور وړتیا ولري، او له هر ډول جوي حالاتو سره تعامل وکولي شي. د دې تر څنګ باید د امکان تر حده رزمي هنرونه لکه کراټې، جمناستک، اسپ سواري او نور هنرونه هم حاصل کړي. عسکري اعداد لاندې دوه عمده برخې لري چې د وسلو او وسائلو صحیح استعمال او عسکري صنعت دي.

۱ـ د وسلو او وسائلو صحیح استعمال:

په عسکري اعداد کې د وسلو استعمال او په خاص ډول د هدف ویشتل ډیر اهمیت لري، او په اسلام کې هم همدې کار ته (قوت) ویل شوی دی. د الأنفال په سورت کې چې الله د اعداد امر کړی او فرمایلي یې دي: (وَأَعِدُّواْ لَهُم مَّا اسْتَطَعْتُم مِّن قُوَّةٍ وَمِن رِّبَاطِ الْخَيْلِ تُرْهِبُونَ بِهِ عَدْوَّ اللّهِ وَعَدُوَّكُمْ وَآخَرِينَ مِن دُونِهِمْ لاَ تَعْلَمُونَهُمُ اللّهُ يَعْلَمُهُمْ)الأنفال/ ۶۰.

ترجمه: (څومره چې کولی شئ د کافرانو د مقابلې لپاره قوت او زین کړي اسونه تیار کړئ چې د الله دښمنان، خپل دښمنان او او نور هغه دښمنان پرې ووېروئ چې تاسې یې نه پیژنئ الله یې پیژني). رسول الله صلی الله علیه وسلم په دې آیت کې د (قوت) تفسیر په (رمیې) یعنې ویشلو سره کړی، او پر دې موضوع یې د تأکید له امله په تکرار سره فرمایلي: (ألا إنّ القوة الرمي، ألا إنّ القوة الرمي، ألا إنّ القوة الرمي). مسلم، ترمذی، ابوداود، ابن ماجه، احمد). خبر اوسئ چې قوت (ویشتل) دي، خبر اوسئ چې قوت (ویشتل) دي، خبر اوسئ چې قوت (ویشتل) دی).

په احاديثو کې د هغه چا په هکله وعيد راغلي چې ننبه ويشتل يې زده کړي وي او بيا يې بېرته هېر کړي وي: (من علم الرمي ثم ترکه فليس منا. ـ أو قد عصى). مسلم. ترجمه: (څوک چې ننبه ويشتل زده کړي او بيا يې پرېږدي هغه زموږ له ډلې نه دى) او يا دا چې (ګناه يې وکړه).

د هدف ويشتلو لپاره د هرې زمانې خپلې وسلې او وسائل وي. که په پخوا زمانه کې ويشتل په غشو، نېزو، منجنيقونو او نورو ابتدايي وسائلو کېدل نو پدې زمانه کې په ټوپکو، توپونو، ميزائلو، بمونو او نورو پر مختللو وسلو او وسائلو ترسره کېږي.

په اوسنۍ زمانه کې د کفارو د پوځي قوت برلاسی او پر اسلامي نړۍ او نورو ولسونو د هغوئ د غلبې اسبابو ته که وکتل شي نو وينو چې همدغه (ويشتل) د هغوئ د قوت راز دی. هغوئ د ويشتونکو وسلو او وسائلو په جوړولو کې دې حد ته رسېدلي چې له زمکې څخه په فضا کې، له فضا څخه په زمکه کې، له وچې څخه په سمندر کې، او له سمندر څخه په وچه کې، او له يوه براعظم څخه په بل براعظم کې خپل اهداف په ننبه کوي او ولي يې. داسې ښکاري لکه د پيغمبر صلى الله عليه وسلم پر دې حديث چې فرمايي: (ألا إنّ القوة الرمي) د دې زمانې تر مسلمانانو کافران ښه پوه شوي وي.

په جهادي اعداد کې په بېلابېلو وسلو د رسا ويشتلو تمرين د پوځي تمرينونو تر ټولو مهمه برخه ده، خو په تأسف سره بايد ووايو چې په افغانستان کې مجاهدين پدې ډګر کې مطلوب تمرين نه حاصلوي، او تر ډېره ځايه وسلې د مسلکي استعمال پر ځای په غير مسلکي او اټکلي ډول استعمالوي چې د دې کار نتيجه له يوه لوري د مرميو د بې حده زيات مصرف او له بل لوري دښمن ته د لږ زيان د وراووښتلو په شکل کې راووځي.

۲ـ پوځي صنعت:

په جهادي اعداد کې پوځي صنعت د اعداد تر ټولو مهمه برخه ده، او هرهغه جهت چې د جګړې د پرمخ بيولو لپاره خپل پوځي صنعت ولري او پر خپلو وسائلو متکي وي، هغه په پوره ډاډ او کفايت د اوږدې مودې لپاره د دښمن په خلاف جنګېدلی شي، او د چا تر فشار لاندې نه راځي.

د افغانستان د جهاد په اوسني جهادي اعداد کې دا ضروري نده چې مجاهدين دې ارومرو د ټانګونو، طيارو، کشتيو، او درنو توپونو او ميزائلو صنعت ولري، او دا ځکه چې مجاهدين نه د دغه ډول صنعت ورتيا لري، او نه يې هم حالات ورته برابر دي، خو يو لړ نور واړه صنعتونه او د ضروري وسائلو توليد هم م ورته مکن او هم ضروري دي چې له هغو پرته ښايي په پوره استقلاليت او اطمينان خپل جهاد ته دوام ورنه کړای شي، دغه ضروري کارونه په لاندې ډول دي:

۱ـ د بارودو بېلابېل ډولونه جوړول.

۲ـ د بمونو او ماينونو بېلابېل ډولونه جوړول.

۳ـ د لنډې مسافې د ويشتلولپاره د ميزائلو جوړول.

۴ـ د بېلابېلو وسلو د ترميم لپاره محلي ورکشاپونه جوړول.

۵ـ د ځينې ساده بيولوژيکي وسلو او سمومو جوړول.

۶ـ بېلابېل نقليه وسائط لکه موټر، موټرسايکلونه، او نور وسائط پداسې ډول عيارول چې د پوځي مقاصدو لپاره ورڅخه کار واخستل شي، او د دې کارونو لپاره د خرادۍ او وېلډنګکارۍ په مسلکونو کې د ځينې مجاهدينو ښه روزل.

۷ـ له بېلابېلو برقي سامان آلاتو څخه د تعليمي، دعوتي او پوځي وسائلو په حيث د کار اخستلو هنر زده کول. دا او دې ته ورته نور ډېر کارونه دي چې په افغانستان کې يې مجاهدين ترسره کولی شي، خو په هغه صورت کې که د جهادي قيادت له لوري دې ډول کارونو ته توجه وشي.

دتعجب ځای دی چې که په عراق، شام، او فلسطين کې مجاهدين ټوپک، ميزايل، راکټ لانچرونه او حتى داسې بې پيلوټه طيارې جوړوي چې د اسرائيلو پر سر کامياب پروازونه کوي، نو موږ چې له څلوېښتو کلونو راهيسې له لويو قدرتونو سره په جګړه اخته يو ولې دغه ډول کارونو ته په مسلکي ډول توجه نه کوو؟ په کار خو دا وه چې په دې ډګر کې د افغانستان دمجاهدينو تجربه تر نورو مجاهدينو زياته وای، خو داسې ښکاري چې زموږ جهادي قيادتونه په هر وخت کې په دې مجال کې د غفلت او بې توجهۍ ښکار شوي دي.

پوځي صنعت که هر څومره وړوکي او ساده هم وي بيا هم د پوځي وسائلو په خود کفايۍ او د دښمن په خلاف کې د مقابلې په کار کې مهم رول لري.

پر افغانستان د امريکا او اروپا د اوسني يرغل په مقابل چې مجاهدينو يوازې د بارودو او په خپلو لاسونو د بمونو د جوړولو صنعت درلود نو دې صنعت د جهاد صف دومره قوي کړ چې د هغه په وسيله مجاهدينو وکولی شول چې د نړيوال صليبي ايتلاف قواوو

تـه داسې ضربې ورکړي چې پـه نتيجـه کې يې د تقريبـا پنځـوس هېوادونو پوځيانو د مجاهدينو په مقابل ماتې وخوړه.

د صليبي ايتلاف د غړو د خپلو احصائيو لـه مخې د هغوئ پوځيـانواو پوځي وسائلو ته تر ټولو لوی زيان هغو بمونو ورا ړولي چې مجاهـدينو پـه خپل لاس له هغو بارودو جوړ کړي چې دوئ په خپله جوړ کړي وو.

د مجاهـدينو پـه يـوه ساده مـاين چې يـوازې سل يـا دوه سوه ډالـره مصرف به ورباندې کېده د امريکايـانو او د هغـوئ د ملګـرو هېوادونـو داسې ټانګونه او پوځي وسائل له منځه تلل چې د هريوه قيمت بـه يې تقريبـاً يـو مليون ډالره وو.

پـه جهادي اعـداد کې د پوځي صنعت شتون د جهاد د تـداوم او د مجاهـدينو د پـوره اسـتقلاليت د ضـمانت پـه معنـی ده، او کـه چېـرې مجاهدين پدې ډګر کې اعداد ونه لري نو طبيعي ده چې د بارودو او مرميـو په لاسته راوړلو کې به له ډېرو ستونزو اوسختو شرائطو سره مخ کيږي.

د پوځي صنعت د برکت او اهميت په اړه د رسول الله صلی الله عليـه وسلم په يوه حديث کې داهم راغلي چې د غشي جوړونکی بـه د هغـه لـه ويشتونکي او ويشتونکي تـه لـه ورکوونکي سره درې واړه جنت تـه ځي: (إنّ الله ليدخل بالسهم الواحد ثلاثـة الجنـة، صانعه يحتسب في صنعته الخير، والرامي به والممد به). المستدرک علی الصحيحين.

ترجمه: (په يقيني ډول الله به په يوه غشي درې تنه جنت تـه داخلوي: د هغه جوړوونکي چې په جوړولو کې يې د ثواب اراده لري، د هغه ويشتونکی، او ويشتونکي ته د هغه ورکوونکی).

پدې حديث شريف کې رسول الله صلی الله عليه وسلم د غشي جوړونکی د هغه له ويشتونکي سره په اجر کې يو ډول ګڼلی دی.

پوځي صنعت په قرآن کريم کې هـم يـاد شـوی دی، الله تعـالی فرمايي (وَأَنزَلْنَا الْحَدِيدَ فِيهِ بَأْسٌ شَدِيدٌ وَمَنَافِعُ لِلنَّاسِ وَلِيَعْلَمَ اللَّهُ مَن يَنصُرُهُ وَرُسُلَهُ بِالْغَيْبِ إِنَّ اللَّهَ قَوِيٌّ عَزِيزٌ) الحديد: ۲۵. ترجمه: (او هم مو وسپنه پيدا کړې ده، پـه هغې سـره سخت جنګ کېدی شي، او خلکو ته ورکې ډېرې ګټې دي، تر څو الله ښکاره کړي هغه خلک چې د الله له ليدلو پرته د هغه او د هغه د رسولانو مرسته کوي، بې شکه الله قوي او پر هر څه غالب دی).

امـام ابـن کثيـر د پـورتني آيـت پـه تفسـير کې وايي: لـه (بـأس شديد) څخه د تورو، برچو، نېزو او زغرو په څېر وسلې مراد دي). کـه پرون له وسپنې مخکنۍ يادې شوې وسلې جوړېدې نو نـن ورڅخـه تـر ټولو پر مختللې وسلې او وسائل جوړيږي.

الله تعالی پر خپل ګران پيغمبر داود عليـه السلام بانـدې يـوه لورينه دا هـم کـړې وه چې وسپنه يې ورتـه نرمـه کـړې او د وسلو او وسائلو د جوړولو هنر يې ورزده کړی وو: (وَعَلَّمْنَاهُ صَنْعَةَ لَبُوسٍ لَّكُمْ لِتُحْصِنَكُم مِّن بَأْسِكُمْ فَهَلْ أَنتُمْ شَاكِرُونَ) الأنبياء/ ۸۰. ترجمـه: (او د زغرو جـوړول مـو ورښوولي وو تـر څـو تاسې يـو د بـل لـه ګـوزار نـه وساتي، نو آيا تاسې شکر کوونکي ياست؟).

د مجاهدينو لپاره د ايماني او پوځي اعداد تر څنګ يـو بـل ډول اعداد هم ډېر ضروري دی چې د هغه په نه شتون کې کېدی شي ډېر مجاهـدين خپـل ژونـد لـه لاسـه ورکـړي، او يـا لـه ډېـرو روغتيـايي ستونزو سره مخ شي. دغه ضروري اعداد (طبي اعداد) دی. په طبي اعداد کې هم دا ناممکنه ده چې هر مجاهد دې ډاکټر شي او د طبابت په ټولو چارو دې پوه شي، خو دا ډېره ضروري ده چې مجاهدينو ته د دوئ په تمرين ځايونو او يا يې د اوسېدلو پـه ځايونو کې د (لومړنيـو طبي مرستو) مختصر تعليمات ورکړل شي، تر څو د عمومي حفظ الصحې، لـه زخمـي سـره د عـاجلې مرستې، د زخميـانو د مناسب انتقـال، د وينـې د درولـو، د ځينـې ضـروری درملـو د اسـتعمال او د طبابـت د ځينـې ضـروري وسـائلو د ساتلو درسونه او عملي تمـرين ورکړای شي.

مجاهدينو ته د ابتدايي طبي تعليماتو ورښوول ځکـه ضـروري دي چې هغوئ اکثراً په داسې سيمو کې اوسېږي چې هلتـه طبيـب، درمل او د درملنې آسانتياوې نه وي، او ياهم د جګړې پـه محـل کې ورتـه د طبيب وررسېدل مشکل وي. د همدغـه ډول حـالاتو لـه املـه په ډېرو وختونو مجاهدين يا دوينې د ضايع کېدلو او يا هم د هغوئ د زخمونـو د شـديد مکروبي کېدلو لـه املـه لـه ډېـرو ستونزوسـره مـخ کيږي.

پـه اوس وخـت کـې چـې اکثـره مجاهـدين طالبان، عالمـان، د مکاتبواو پوهنتونولوستي ځوانان دي په ډېرې اسانۍ سره کولی شي په لنډه موده کې ابتدايي طبي اعداد حاصل کړي. نو پـه کـار ده چې جهادي قيادتونه په هر ځای کې او په خاص ډول پـه افغانستان کې طبي اعداد ته ډېره پاملرنه وکړي.

# په یوه ډبره دری کاله زندان !!




داسرائیلو دغاصب رژیم پارلمان ، دمجازاتو هغه لایحه منظوره کړي ، چې که یوفلسطیني نور داسرائیلي فوځیانو په لوري ډبره وار کړي ، هغه تن به ۳ کاله بامشقته زندان تیروي .

"جمال زحالقه" په اسراییلي پارلمان کې یو عرب مسلمان غړي دی چې همیشه دفلسطین په اړه داسرائیلي پریکړو شدید مخالفت کوي ، هغه د فلسطیني ولس په خلاف دورستی پریکړي دغندلو په ترڅ کې اسرائیلي پارلمان ته وویل : تاسي فکر کوی چې دیوې ډبرې په مقابل کې ددریو کلونو په زندان سره به فلسطینیان وویروي او هغوی به دیته اړ کړي چې دخپلې دفاع له همدې ورستی وسیله نه هم په شاوګرځي ، پام تاسي سخته اشتباه کوی ، ستاسې پریکړه ددې پرځای چې له ډبرو هم ځان خوندي کړی ، هغوئ نور ځانته مقابلې او جګړې ته رانیږدي کوی او دجګړې په اور تیل شیندی اوهم فلسطیني ځوانان دمقابلې نوو ډولونو ته مجبوروي !!

کابو ۴۰ شپې کیږي چې اسرائیلي غاصب رژیم دباختري کراني ، غزې ، یهود میشتو سیمو او دفلسطین په نورو برخوکې دخپلو ناترسه یرغلونو په ترڅ کې نیږدې ۱۰۰ تنه شهیدان ، ۲۰۰۰ تنه ټپیان او پنځه زره تنه داوښکي بهونکي ګاز په وسیله متاثر کړي .

عیسی قراقع ، چې دفلسطین ازادي ښبنونکي سازمان داسیرانو مشر دی ، وایي : تنها داکتوبر په میاشت کې اسرائیلي فوځیانو ۸۰۰ تنه فلسطیني ځوانان دالقدس له ښار څخه نیولي او له ځان سره بیولي دي ، دنومورې په وینا دځوانانو له نیولو دغلیم هدف داده چې دځان په وړاندې دمقاومت روحیه کمزوري کړي او نوي نسل له منځه یوسي ، دقراقع په وینا له تیري یوې لسیزي راهیسي ۹۰۰۰زره تنه فلسطیني تنکي او کم عمره ځلمیان اسرائیلو په دې جرم چې ددوئ دفوځیانو په خلاف یې ډبرې وورولي ، نیولي او محاکمه کړي دي .

دډبرې انتفاضه

یعني ډبرین انقلاب ، چې ړومبی فلسطیني انقلاب یا اوله انتفاظه یادیږي ، د۱۹۸۷ ددسامبر په میاشت په غزه او قدس ښارکې مظلومو فلسطینیانو له ځان څخه ددفاع په خاطر پیل کړه .

فلسطینی ځوانانو لدې امله دډبرو اورولو انتفاضې ته لاس وغځاوه چې بله هیڅ وسله او چاره یې پرته لدې همدې ډبرې په لاس کې نه لرله ، ترڅو له ځان څخه دفاع پرې وکړي او داسراییلي یرغلګرو غرور پرې مات کړي ، ځکه اسرائیلو ، په ډیرجبر دفلسطینیانو اباد کورونه نړول ، ځمکي به یې مصادره کولې او یهودو ته به یې داستوګني او ابادی زمینه سازي کوله

فلسطیني ځوانان دې نتیجې ته رسیدلي وو چې دوی باید په خپلو متو او خپلو ډبرو ځومره یې چې په توان کې وي له دین او دمسلمانانو له ړومبی قبلي څخه دفاع او ننګه وکړي ، ځکه دنړئ ځومره بشري سازمانونه ، دانساني حقوقو مدافعین چې ستر ستر نومونه لري او همیشه په همدې اړه شعارونه ورکوي او په سرکې یې ملګري ملتونه رازي ، دفلسطین په قضیه کې تل ړانده ، کاڼه او بې تفاوته پاتي شوي .

امریکا ، غرب ، ملګرو ملتونو او داسلامي اوعربي هیوادونو واکمنو یوه ورځ هم دا غبرګون ونښود چې اسرائیل دې نور د هغه ولس په مقابل چې لویه وسله یې ډبره او لیندی ده دخپلو مدرنو وسلو او زهرجنو بمونو ویشتلو لړئ پرې بنده او ودروي.

همدااوس چې اسرائیلي پارلمان دفلسطیني ځلمي دډبرې په مقابل کې کومه ظالمانه اوبزدله پریکړي کړي ، مونږ خو دنړې له یوه نړیوال قضایي ، جنایي اوبشري سازمان څخه دتبصري ترحده هم کوم غبرګون وانه ورید ، داخو له امکانه لیري خبره راته ښکاري چې هغوئ داسراییلو دممنوعه وسلو او زهریله وسلو دکاروني په مقابل کې دفلسطینیانو تش لاسي مبارزي او دډبري ویشتلو معرکې ته دخپل ځان ددفاع ترحده اجازه ورکړي او هغه برحقه وبولي. ( والله المستعان والیه المشتکی )

# دکابل له مفسدو واکمنو دخیر تمه.. نشي کیدای

خلیل عزیز

دامریکادبهرنیو چارو دوزیر (جان کیري) په ګوتو دجوړ رژیم ، چې په خپل خاص مهارت یې ورته دوه سرونه رسم اوپرې وتومبل ، دهغه هدف داوه چې تریوې مودې پورې به دافغانانویوه مهمه برخه د مفکر په مبالغو او چټیاتو اوبله حصه به دپخوانی تلوالې دفیشني ډاکټر په اوتوبوتو تیرباسي ، اوضمنا به داذهنیت هم افغانانوته ورکړي چې دافغانستان په تاریخ کې دملي مشارکت په نامه یوداسې رژیم صحني ته راغی چې هرقوم او ملیت به خپل ځان او حقوق نور په مساوي شکل هلتهویني.

خو حقیقت هیڅکله داسې نه وو ، نه امریکایانو غوښتل اونه یې غواړي چې افغانان ارام ، سوکاله او مترقي وي اوترخپل منځ یې دملي وحدت او مشارکت ربښتیني فضا موجوده وي او نه هم هغه څیرې چې امریکایانو دکابل اداري دزعامت لپاره وټاکلي داجوهر او صلاحیت په ځان کې درلوداولري چې دافغانانوملي وحدت او غوره راتلونکی حفظ اوخوندي کړي.

الله تعالی په ډیره کمه موده کې دافغانستان دعلیا مصالحو اوملي ارزښتونو په ضد ،جوړه دسیسه رسوا ، جعلي څیرې یې برملا اودهغوئ بدنیتونه یې ښکاره کړل ، یوله بل سره یې په هغو مسایلو چې خپلو بادارانو ورته منځ غورځولي وي په شخړو او کشمکشونو اخته شول ، هریوه بادار ته د ښې نوکری اوچاپلوسی دښودلو په هیله مسابقي ته زور ورکړ ، له یوه شرم او عار څخه یې هم مخ وانه ړاوه.

حالت هغه حد ته ورسید ، چې اوس دافغانستان دهرې طبقي اوقشر پورې وابسته وګړي نه چې دکابل رژیم په اړه پوښتنه وکړای شي ، ټول په دې متفق او په صراحت وایي چې دافغانستان په تاریخ کې تردې ، شرمیدلی اوبې هویته دولت ! نه راغلي او نه به هم راشي.

ځکه دا اشرف غني اوډاکټر عبدالله وو چې په ډیره کمه موده کې یې دواحد افغان ملت په تني دتوپیر اوجدایي چاړه راکش کړه ، دتذکرې په پلمه یې دژبې او هویت خطرناکه موضوع راپورته کړه ، له ګاونډیو سره یې دافغانستان په حساسو اوتاریخي مسایلو معاملو ته زمینه سازي وکړه ، افغانستان یې مخامخ دیوې اډې او پروژې په شکل دامریکایانو غیږ ته وروغورځاوه ، افغانان یې دازاد بازار دمهلکي مافیا په دام کې نور راګیر اوپه فقر او غربت اخته کړل ، دفساد ، غلا او چپاول کچه یې تردې حده ورسیده چې یوه یوه وزیریې له څلورو نه ترپنځو سوو میلونو پوري بډې اورشوت واخیست اوهضم یې کړ ، قاضیان ، څارنوالان او نور دولتي چارواکي یې له ډالروپرته په نورو اسعارو رشوت اخیستو چمتونه وي ، داخلاقي فساد ، بې حیایي تمویل او ملاتړ په ښارونو کې خاص دولتي ارګانونه اوموظفي خارجي موسسې ترسره کوي ، دبې کاری ، افلاس او عدم اطمنان حالت خو هرڅوک ویني چې په همدې روان کال کې نیږدې دوه نیم میلونه ځوانان او فامیلونه له افغانستان نه اروپا ته تیښتي ته اړ شول اودژوند تریخولو سخت کړاونه زغمي.

نو په دغسي یو حالت کې چې دولسونو دیني اوملي ارزښتونه مصؤنیت ونلري ، دټولنیز عدالت په مری چاړه کش وي، فساد ، بې حیایي اوج ته رسیدلي وي ، امنیت ، ډاډ اومصروفیت په دوربین کې نه ښکاري ، چارواکي ټول غله ، رهزن او دتوري مافیا غړي وي او دافغانستان دمصالحو اوګټو په ځای ورته امریکایي او خارجي منافع حیاتي ارزښت ولري ، نو څنګه به یو بادیانته اود پاک ضمیر په ګانه ښایسته افغان دکابل په اوسنی خچني اداري اومفسدو چارواکو باور ولري اودخیر تمه به ترې ولري ؟

# او نن طالبان

## دسولې دپروسې دمهم لورې په توګه !!!

بت شکن

ښه راته ياد دي، چې د(۲۰۰۱)کال دامريکايي يرغل په لومړيو ورځو کې دامريکا دهغه وخت ددفاع وزير(رونالډ رمز فيلډ)به په ډير غرور او تکبر سره خبري غونډو کې ويل او د(BBC)او آزادی راديو ګانو به پرله پسې خپرول، چې ترهګر(طالبان) به نور دتاريخ يوه پاڼه وي، موږ به دوئ ته نوره اجازه ورنکړو، چې بيا ترې يو قوت جوړ شي، موږ به دوئ پسې غارونو او سمڅو ته ورشو او دوئ به له غارونو او سمڅونه راوباسو، او دوئ ته به سزا ورکړو....او......او.......... چې دادی نن دالله ج په مرسته داسلامي امارت مجاهدينو وکړای شول، څو دامريکا او ناټو د برم او غرور څلي راونړوي او په نړواله سطحه ورته داسې ملاماتوونکی شکست ورکړي، چې دبيا لپاره د کوم اسلامي هيواد پر حريم يرغل ته زړه ښه نکړي.

افغانستان کې دطالبانو جرم !! داو، چې هيواد يې له تجزيې او ځانځانی نه خلاص کړ، پر خلکو يې دجنګسالارانو مظالم پای ته ورسول او يو بې بيلګې اسلامي شريعت يې نافذ کړ، همدا ګناه وه، چې دنړی کفري هيوادونو پسې راواخسته، چې بالاخره يې زموږ اسلامي هيواد باندې ښکيلاکي خيټه واچوله

دوئ چې کله تر نظامي فشار لاندې راشي، دعسکرو دوتلو شعارونه ورکوي او چې کله لږ ارام شي، نو بيا وايې افغانستان يې ستراتيژيک ملګری دی او زرګونه عسکر به يې تر کلونو پورې دلته ميشت وي.

اوس چې نږدې تر(۱۵)کاله جهادي مقاومت وروسته، يې همدې طالبانو چې دوئ به دتاريخ پاڼه بلله، دغرور شمله راکښته کړه او نړيوال برم يې پر مځکه پريوت، نو عقل يې سر ته راغی او اوس طالبانو ته دترهګرو!! پرځای دهيواد دسولې يوه مهمه کتله وايې، نن دطالبانو پر قوت، بشردوستی او مدنيت اعتراف کوي، دامنې چې له طالبانو پرته سوله ناشونې ده او ددوئ په قول چې نور به دطالبانو پروړاندې دترهګری ضد دبريد هوډ نکوي او دوئ ته به دسولې ديوه قوي جهت په ستر ګه ګوري.

نړيوالو رسنيو په (جمعه، ۱۵ لړم، ۱۳۹۴ ل نيټه يو حيرانوونکی خبر خپور کړ، چې پکې داسې ليکل شوي وو :(د امريکا دفاع وزارت ويلي دي, چې دوئ پس له دې په افغانستان کې د طالبانو پر وړاندې د ترهګری ضد عمليات نه ترسره کوي، ځکه دوی طالبانو ته د افغانستان په سولې او ثبات کې د يو مهم برخوال په ستر ګه ګوري.

د ښتاګون د بحري قواوو وياند جګړن «جيف ډاويس» په واشنګټن کې يو خبري کنفرانس ته

وویل»: هغه کار چې مونږ یې نه شو کولی، د طالبانو پر وړاندې د ترهګرۍ ضد عملیات دي.«

نوموړي زیاته کړه»: حقیقت دا دی چې زمونږ په باور طالبان د افغانانو په مشرۍ د سولې پروسې یو مهم لوری دی. مونږ په فعالانه ډول طالبان نه شو په ښه کولی............



دافغانستان دچارو کارپوهان پدې آند دي ، چې دطالبانو په باب دښتنا ګون وروستی زمینت په ډاګه کوي ، چې نور افغانستان کې دامریکا پښه ښویدلې او دطالبانو سره نور دجنګ وس یې له لاسه ورکړی ، نو ځکه یې خپل دریځ ددوئ په اړه نرم کړی او غواړې چې دنرمو خبرو او نوي دیپلوماسۍ په خپلولو سره دځان دبچ کولو کومه چاره وسنجوي او کومه داسې طرحه جوړه کړي، چې له هیواده ابرومندانه پداسې بڼه ووځي ، څویې نړیوال وقار زیانمن نشي او نه ترې خپل ولس بیزاره شي .

امریکایانو چې نه دروسانو او نه دپیرنګیانو نه عبرت واخیست او نه یې دچامشورې اوریدلې، نن دادی پداسې بد برخلیک اخته دي ، چې هیڅ چاره یې ورته نه ورځي ، طالبان دوئ ته یو کمزوری او بې وسلې قشر ښکاریده ، خو پدې نه وو خبر، چې ددوئ جنګریز دیوه سپیڅلې هدف لپاره دی ، ددوئ پاڅون دیوه شرعي نظام ، سولې او ثبات او دخپلو اکۍ غوښتلو لپاره دی ، چې ددې عالي ارزښتونو په درلودلو ورسره دلوی څښتن مرسته هم ورسره مله ده او دمسلمانانو ملاتړهم ددوئ سره ملګری دی .

پای کې یو وار بیا وریادوو!

چې اوس هم سروخت دی ، که امریکایان او لویدیځوال ږښتیا هم غواړي، چې هیواد کې سوله راشي، نو باید چې دافغانانو اسلامي او ملي ارزښتونه تسلیم کړي او ددې ارزښتونو څخه ددفاع علبمردار سیاسي او جهادي ځواک (طالبان) به هغه څوک وي، چې دږښتیونې سولې او امنیت په لاره کې ترې ډیر څه تمه کیدای شي ، نو په همدې هیله، چې څنګه یې نړیوال وایې حقیقت کې هم ددې اسلامي قشراومسلمان قام اقتضآت ، روایات او هم دیني غوښتنې ومني او ددوئ محارم تر خپلو هغو غوندې سپیڅلې او باتقدسه وبولې، نو به شونې وي، چې یو خوشحاله او سوکاله افغانستان رامنځته شي او دجنګونو او جګړو اوربه دتل لپاره مړ شي !

## څلـــوریزه

د چــا پــه انتظـــار ده کــه امیــل یـــې دی ورک کـــړی
پـــه هـــر قـــدم ودرېــږي تـــر ګـــودره ځـــي راځـــي

دا پیغلــه خـــو کـــتې مـــتې ده لکـــه خـــورد ملالـــۍ
راوړي زلمـــو تـــه غشـــي تـــر لښـــکره ځـــي راځـــي

د تعلیم او تربیې او عالي تحصیلاتو کمیسیون

(لومړۍ برخه)

# تعلیم او تربیه د ژوندانه اړتیا !

داسلام سپېڅلي ، جامع او کامل دین د الهي ادیانو په سلسله کې وروستنی دین دی چې تر پایه به د نړۍ نظام رهبري کوي ، څومره تحولات او بدلونونه چې دانساني ژوند په هره برخه کې راځي دا ټول به پخپله لمن کې رانغاړي دا ځکه چې اسلام یوعلمي دین دی او دعلم په رڼا کې انساني ژوند اودنړۍ تحولات تنظیموي نو ددې لپاره چې خلک داسلام او دهغه دلارښونو په حقانیت پوه شي دعلم په زدکړه ، ښوونه او روزنه زیات ټینګار کوي آن تر دې چې د انبیاؤ بعثت دعلم او ښوونې پر بنسټ ولاړ دی الله جل جلاله فرمایي :

(هوالذی بعث فی الأمیین رسولا منهم یتلواعلیهم آیاته ویزکیهم ویعلمهم الکتاب والحکمة ...) (سورة الجمعة ایت ۲)

یعني الله هغه ذات دی چې په امیانو ناپوهانو کې یې له دوی څخه یو رسول (محمد ) رالیږلی چې لولي پر دوي باندې آیتونه ددې (قرآن ) او پاکوي دوی (له شرک اونورو ناولي اخلاقو) او ښيي دوی ته کتاب (قرآن ) او احکام ( دقرآن )

بل ځای فرمایي : ولکن کونوا ربانیین بما کنتم تعلمون الکتاب وبما کنتم تدرسون .....(آل عمران آیت ۷۹) یعني لکن شی تاسي عالمان عاملان په سبب ددې چې یې تاسې چې ښوونه کوی خلکوته د کتاب (شرعي احکامو) او په سبب ددې چې تاسې تدریس کوی !

په یوه حدیث شریف کې راځي : ولکن بعثنی مُعَلِّماً ...رواه مسلم . یعني خو زه یې معلم را استولی یم .

څرنګه چې په دغه حدیث شریف کې (معلماً) نکره راغلې علماء کرام وایي : داد دې لپاره چې دعلم ټولو ډولونو ته شامل وي .

دبخاري شریف په یوه حدیث کې راځي : خیر کم من تعلم القرآن وعلمه ... یعنې ستاسو ډیر ښه اوغوره هغه څوک دی چې قرآن کریم زده کړي او نورو ته یې ور وښيي او دارنګه نور ډیر قرآني آیتونه او نبوي احادیث شته چې مونږ ښوونې او زده کړې ته هڅوي.

هو کې داسلام سپېڅلی او کامل دین د ښوونې او روزنې لپاره هم ځانګړي اصول او مقررات لري چې د هغو په رعایت کولو سره ښوونیزه لړۍ مؤثره ، اسانه او هر اړخیزه ګرځي په تعلیمي لړۍ کې مختلف اړخونه موجود دي چې مونږ غواړو هرې برخې ته داسلامي هدایاتو ،انساني فطرت او ارزښتونو په رڼا کې یوه لنډه کتنه وکړو ترڅو وکولای شو داستاذانو ، شاګردانو او ټولو تعلیمي ادارو سره مو یو ډول مرسته کړې وي او دغه تعلیمي لړۍ مو په مؤثره توګه پرمخ بیولې وي .

استاذ :

په لومړي سر کې غواړو ددې لړۍ دمهم رکن ( استاذ ) په اړه اسلامي ارشاداتو ته اشاره وکړو ، داستاذ مقام ، داستاذ مواصفات ، داستاذ ښوونیز مسئولیتونه شاګردانو او ټولنې ته او داسې نور ....

لومړی داستاذ مقام او حیثیت :

داستاذ یا معلم مقام له دې څخه پوره څرګند دی چې دالله جل جلاله صفت دی او الله پاک دانساني خلقت او پیدایښت مبدأ په تعلیم سره پیلوي ، پرښتو او انبیاؤ ته تعلیم ورکوي تر څو هغوی یې مسلمانانو ته ورکړي

آدم علیه السلام ته دخلقت او موجوداتو اسرار ورښیي ، یوسف علیه السلام وایي : ( وعلمتني من تأویل الاحادیث ..) (یوسف ایت ۱۰۱) یعنې او ښوولي دي دي ماته څه له ګرځولود خبرو (تعبیر الرؤیا)

سلیمان علیه السلام فرمایي : وعُلِمْنا منطق الطیر ... (النمل -۱٦) یعنې ښولي شوي دي مونږ ته خبرې دالوتونکو مرغانو . د داؤد علیه السلام په هکله فرمایي : (وعلمناه صنعة لبوس) ( الأنبیاء -۸۰) یعنې او ور زده کړي مو ووده (داؤد) ته جوړول د زغرې .

دخضر علیه السلام په اړه فرمایي : ( وعلمناه من لدنا علما) (الکهف -٦٥) او ښوولی مو وو ده ته له جانبه خپله یو لوی علم .

نازولي پیغمبر حضرت محمدرسول الله علیه السلام ته یې هغه علوم ورښولي وو چې دطبیعت له لاري ممکن نه وو فرمایي : (وعلمک مالم تکن تعلم ) ( النساء-۱۱۳) یعنې او در ښوولي یې دي تاته هغه خبرې چې ته پرې نه پوهیدې او بیا رسول الله صلی الله علیه وآله وسلم په خپله فرمایي : ولکن بعثنی معلماً ... لکن خو زه یې معلم را استولی یم .

د ملائکو په هکله فرمایي : (سبحانک لا علم لنا الا ما علمتنا ). (البقرة-۳۲ ) نشته هیڅ علم مونږ ته مګر په هغه شي چې تا مونږ ته ښودلی دی .

د جبریل علیه السلام په باب فرمایي : (علمه شدید القوی ) (النجم-٥) یعنې ښوولی ده ده ته دسختو قوتونو مالک (جبریل).

د بشر (انسان) په اړه فرمایي : وعلمه البیان ...او ده (انسان)ته یې بیان ور ښودلی او داسې نور .

چې له دې ټولو څخه دا څرګنده شوه چې استاذ اومعلم دالله جل جلاله او دهغه دانبیاؤ صفت دی نو هر څوک چې دغه صفت خپلوي باید دانبیاؤ خویونه په ځان کې راولي تر څوېې دغه امانت په ښه توګه تر سره کړی وي چې ځینې ضروري صفاتو ته یې په لاندي ډول اشاره کوو :

ایماني او نفسي صفتونه :

۱. په الله جل جلاله او دهغه په احکامو باندي ټینګ باور او یقین ساتل .

دغه باور او یقین چې دعقیدې بنسټ جوړوي باید په استاذ کې موجود وي تر څو وکولای شي له یوې خوا خپل مسئولیتونه په پراخه حوصله ترسره کړي ، دستونزو په وړاندې زغم ولري اوله بلې خوا په شاګردانو کې دا ډول یقین او باور پیداکړي تر څو د علم د زدکړې په لاره کې د هر ډول مشکلاتو او ناخوالو په مقابل کې ثبات ولري او خپلو زده کړو ته دوام ورکړي .

۲. صداقت او رښتنولي :

الله جل جلاله فرمایي : (یا ایها الذین آمنوا اتقوا الله وکونوا مع الصادقین ) (التوبة -۱۱۹) ترجمه : ای مؤمنانو له الله څخه وویرېږئ او اوسئ سره له صادقانو .

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي (إن الصدق یهدي الی البر وان البر یهدي الی الجنة). البخاری کتاب الأدب. یعنې صداقت او رښتنولي نیکۍ ته لارښوونه کوي او نیکي جنت ته سړی بیایي.

استاذ باید رښتونی وي ځکه هغه مقتداء او مربي دی شاګردان او ملګري یې ده ته ګوري او دده کړه وړه ، خبرې او ټول حرکات د ځان معمول ګرزوي نو ځکه استاذ ته داهم روا نه ده چې د مسخرو په ډول دروغ ووایي ، داستاذ قول او عمل باید سره سمون ولري چې تر دغه تهدید لاندي رانشي

چي ! ( لم تقولون ما لا تفعلون) (الصف -۲) ولې هغه څه واياست چې نه يې کوئ؟!

امام غزالي رحمه الله فرمايي ! ( لان العلم يدرک بالبصائر والعمل يدرک بالابصار وارباب الابصاراکثر فاذا خالف العلم العمل منع الرشد ) ترجمه : ځکه چې علم د زړه په ديد موندل کيږي او عمل دستر ګو په ديد او اعضاؤ ترسره کيږي او د ستر ګو ليدونکي زيات دي نو کله چې علم او عمل سره مخالف وي بيا هدايت نه پيدا کيږي .

او کله چې شاګرد خپل استاذ په سګريټو،ښکنځلو ،ترک الجماعت اونورو ناوړه کارونو ويني نو هيڅکله له ده څخه ښوونه اوهدايت نه مومي او په خبرو يې شکمن کيږي .

**۳.عدل او برابري :**

الله تعالي فرمايي ( واقسطوا ان الله يحب المقسطين) (الحجرات-۹ ) ترجمه : او عدل او انصاف کوئ (ای مؤمنانو!) بيشکه الله تعالي عدل کونکي خوښوي .

برابري اوعدالت هم د دين له لوړو صفاتو څخه دي چې بايد په استاذ کې هم دغه صفت موجود وي دشاګردانو په منځ کې برابري وکړي ، يو پر بل ترجيح ورنکړي ، داخلي ستونزې داستاذ اوشاګرد په منځ کې اودشاګردانو په منځ کې په عدالت سره حل وفصل کړي . او هم په درسي اوښوونيز نظام کې ټولو شاګردانوته په يوه نظر وګوري خپل معلومات په يو ډول ټولو ته تشريح کړي د ټولو سره يو ډول چلند ولري ترڅود ځينو زړونه مات نشي اوهم د نفرت او کرکې سبب ونه ګرزي .

**۴.صبر اوزغم :**

الله تعالى فرمايي ( ولمن صبروغفر ان ذالک لمن عزم الامور ) (الشورى - ٤٣) ترجمه ... او بيشکه دغه صبر او عفوخامخا له غوره کارونو څخه دي .

هر استاذ بايد په ياد ولري چې دده رسالت دانبياؤ رسالت دی چې له زغم او صبر څخه به ډک وي اوپه دې باندې بايد پوه شي چيدی د داسې نه پوهيدونکو شاګردانو سره مخامخ دی چې هغوی به دده په مقابل کې ناوړه حرکات کوي ، د درسونو په زده کړه کې به زيات مشکلات لري ، اخلاق او ادبيات به يې کمزوري وي ، داستاذ حقوق به نه پر ځای کوي خو د دې ټولو په مقابل کې به استاذ له زغم څخه کار اخلي ترڅو دده صبراو زغم د شاګردانو د هدايت سبب وګرزي او دی د لوی اجر څخه برخمن شي .

**۵.امانت :**

الله جل جلاله فرمايي : ( ان الله يامركم ان تؤدوا الأمانات الى اهلها ) (النساء- ٥٨) ترجمه : بيشکه الله تعالي تاسو ته دعدل اوانصاف امر کوي دد ې چې وسپارئ تاسې امانتونه اهل د اماناتو ته .

امانت چې داسلام له لوړو صفاتو څخه دی او د هر چا مسئوليت دی خو استاذ بايد په پوره توګه دغه صفت د ځان لپاره خپل کړي ، له استاذ څخه ددې صفت غوښتنه داده چې دی به خپل معلومات په پوره توګه شاګردانو ته رسوي ، نصيحت او د نيکو اخلاقو ښوونه به ورته کوي او په دې لاره کې به پوره کوښښ او زيار باسي تر څو يې خپل امانت په سمه توګه سرته رسولی وي .

**٦.له شبهاتو اومروت ضد شيانو څخه ځان ساتل :**

په يو حديث مبارک کې راځي ( فمن اتقى الشبهات استبرء لدينه وعرضه) بخاري کتاب الايمان

ترجمه : او څوک چې له مشکوکو شیانو څخه ځان وساتي نو خپل دین یې د شرعي بدۍ اوعزت یې د خلکو له ملامتۍ وساته . قال النووي رحمه الله : استبرألدينه وعرضه : أي حصل له البراءة لدينه من الذم الشرعي وصان عرضه عن كلام الناس فيه .

یو استاذ باید په ټولنه کې په ځانګړي توګه په تعلیمي ماحول کې داسي صفا، باعزت او بامروته وي لکه سپینه جامه چېهیڅ تور داغ وریوري نه وي ، داسې کار به نه کوي چې هغه دده مروت ته زیان رسوي لکه : ناوړه حرکات ، بې ځایه خندل ، ټوکې او مسخرې کول اوداسې نور...دا ځکه چې کله استاذ د شاګردانو په نزد باوقاره اودروند معلوم شي نو دهغه په هره خبره یې باور وي او په ذهن کې ځای ورکوي او هره خبره یې مني

۷.حیاء:

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي : (الإیمان بضع وستون شعبة والحیاء شعبة من الإیمان ) بخاري كتاب الايمان ترجمه : ایمان څو شپیته څانګې ده او حیا ء دایمان له څانګو څخه یوه څانګه ده.

حیاء په ایماني صفاتو کې داسې یو صفت دی چې په چا کې موجود وي هغه ددې ښکلي صفت په سبب داسې کار ته لاس نه وروړي چې دده ایمان ،عزت اووقار ته زیان رسوي نویو استاذچې دغه لوړ صفت ولري دهغه ټول حرکات ، سکنات ، خبرې او تعلیم له ژور تاثیر څخه ډک وي او په شاګردانو کی مثبته اغیزه کوي ، له ده څخه هم حیاء کوي او له نورو سره هم دغه عادت خپلوي.

.۸د جماعت په لمانځه عادت ساتل:

څرنګه چې دجماعت لمونځ دوجوب په مرتبه کې دی نو په یوه تعلیمي ماحول کې بیا په ځانګړي توګه داستاذ لپاره خو بیخي ضروري ده چې پخپله دجماعت دلمانځه پابند واوسي ځکه دده په ورځني هدایاتو او لارښونو کې داخبره په سر کې ده چې شاګردانو ته به ددې توصیه کوي او عملا به شاګردان جماعت ته هڅوي نو استاذ باید د جماعت د وخت پوره پاملرنه وکړي او په خپله د جماعت په لمانځه کې حاضر وي

.۹ښکلی اوصفا منظر او مظهر:

استاذ باید دیوه ښکلي او صفا منظر او صورتي مظهر څخه برخمن وي جامه یې پاکه سوتره او خوشبو داره وي شرعي لباس به یې په تن وي ټول هیئت اوصورت به یې له شریعت سره برابر وي ، نو چې دی په صفا، پاک اوسپیڅلي صورت کې وي د شاګردانو په نظر کې دروند معلومیږي او خبرې یې ښه اثر کوي.

۱۰ . حلم او عفو:

الله تعالي فرمایي ! ( خذالعفو وأمر بالعرف واعرض عن الجاهلین ) (الاعراف ۱۹۹)

ترجمه : ونیسه (ای محمده!) عفو (عادت دعفوې کولو ) او امر وکړه په معروف سره او مخ وګرزوه (څنګ وکړه ) له ناپوهانو څخه.

دغه صفت هم داسلام له ډیرو لوړو صفاتو څخه دی چې د استاذ لپاره یې ضرورت تر هر چا ډیر دی.

ځکه چې استاذ د ټولنې له داسې یو چا (شاګردانو ) سره مخامخ دی چې هغوی ټولنیز حقوقي او اخلاقي نزاکتونه او معیارونه نشي رعایت کولی پوهې اولارښووني ته ضرورت لري نو طبیعي خبره ده چې له هغوی څخه به د استاذ په مقابل کي ناوړه حرکات پیښیږي ، بدخُلقي او بې ادبي به کیږي نو په دا ډول مواردو کې به استاذ ددغه صفت (حلم او عفو) جوهر څرګندوي د انتقام په فکر کې به نه لویږي تر څو له یوې خوایې د الله تعالی د امر د امتثال په سبب لوی ثواب ترلا سه کړی وي او له بلې خوا یې د شاګردانو په زړونو کې د حلم او زغم تخم شیندلی وي.

۱۱– تواضع او نرمي:

الله تعالي فرمايي ( فقولا له قولا لينا لعله يتذكر ) ( طـه -٤٤)
ترجمه : پس ووايئ ده (فرعـون) تـه خبـره پسـته ښايي چې دی پند واخلي.

استاذ بايـد متواضـع او نـرم مزاجـه وي , د شـاګردانو سـره پـه ورین تندي برخوردولري ترڅو شاګردان وکولای شي کوم وخـت چې ضرورت وي له هغه څخه پوښتنه وکړي , معلومات تر لاسـه کړي او خپل مشکل حل کـړي خـو بالعکس کـه چېـرې پـه استاذ کې دغه صفت نه وي نو له يـوې خـوا شـاګردان خپـل مشـکل نشـي حل کولای اوله بل پلوه په شاګردانو کې هم دغه اخلاقي نميګړ تيـا منځ ته راځي.

**۱۲ – شفقت او مهربـاني:**

الله جل جلاله فرمايي ( ثم كان من الذيـن آمنـوا وتواصوابالصـبر وتواصوا بالمرحمة) (البلد – ۱۷ )

ترجمه : بيا وي دغه کسان چې ايمـان يـې راوړی او وصـيت کوي يو له بله په صبر سره او وصيت کوي يو له بلـه پـه مهربـانۍ او شفقت سره.

د شـفقت او مهربـانۍ صـفت د يـوه اسـتاذ سـره يـو ځـانګړی خصوصيت لري ځکه استاذ د ټولنې د يوه داسي نسل سـره مخـامخ دی چې زيـات شـفقت او مهربـانۍ تـه ضـرورت لـري چې هغـه د ټولنې کشر او ځوان قشر دی هغوی چې همـدا اوس دخپلـې مـور او پلار او کورنۍ د شفقت له غيږې نوي راوتلي او مدرسـې تـه راغلـي نو استاذ ته هم د خپل پلار او نيکه په سترګه ګوري او د همداسې مهربانۍ غوښتنه ورڅخه لري نـو استاذ تـه هـم پـه کـار دي چې د هغوی احساسات وساتي او علم او زده کړې ته د تشويق پـه خـاطر تر مور او پلار بهتره چلند ورسـره وکـړي ، ټولوتـه پـه يـوه سـترګه وګوري او دمهربانۍ او شفقت لاس يې پـر سـر راتيـر کـړي تـر څـو په دغه تعليمي درشل کې ثابت پاتـه شي او پـه بريـاليتوب سـره دغه لړۍ پر مخ بوزي.

نور بيا.

د تعليم او تربيې او عالي تحصيلاتو کميسيون

## ملغلرې

١= څوک، چې د پور د ادا کولو توان لري، خو بيا هم د مالک له اجازې پر تـه ځنډ پکې کوي، هغه ظالم ګڼل کېږي .
٢= په خپله ځان هوښيار ګڼل ستره ناپوهي ده .
٣= خپل ځان لوی ګڼل په حقيقت کې لـه الله (ج) سره دښمني ده، ځکه د لويي ښښتن او وړ يوازې خدای (ج) دی .
۴= له ښځې سره په ښو اخلاقو ژوند وکړئ، هغې تـه تکليـف مـه ور کوئ، بلکې لـه هغې څخه تکليفونه لرې کړئ.
۵= د توکل غوښتنه دا نه ده، چې سړی د حلال رزق او ښه ژوند لټون ونه کړي .
۶= ښځه د دنيا بر کت او د آخرت ښېګڼه ده .
٧= علم د زړه د حالاتو د پېژندلو نوم دی .
٨= ماشوم له مور او پـلار سره امانت دی او د هغـه زړه هماغـه سپېڅلی جوهر دی، چې له هر ډول زيان څخه پاک دی .
٩= د انسان تر ټولو لوی او ستر وياړ دا دی، چې خپل زړه او ژبه په کنټرول کې وساتي.
١٠= د علم په وسيله د ناپوهۍ لمن ټولول غوره کار دی .
١١= کوم ملګری مو، چې درد او غم په وخت کې پـه ښـه رانه شي هغـه تـر ټولو سـتر دښمن وګڼئ .
١٢= درې څيزونه د زړه د ناولتوب لامل ګرځي : کينـه، ځان ښودنه (ريـا)، د ځان لوړ اوی او د بل سپکاوی .
١٣= ځان تر ټولو لوړ ګڼل ناپوهي ده، هوښيار هغه دی، چې نور له ځانه لوړ او غوره وګڼي .
١۴= د دنيا جاه و جلال، چې څومره ډېرېږي د انسان د هوا او هوس تنده هومره زياتېږي .
١۵= له اړتيا پر ته خوراک مکروه دی، په خوړو کې بې ځايه خبرې مه پيدا کوئ کـه مو نه وي خوښ، نو مه يې خورئ.
١۶= تر ټولو ښه پانګه، ذاکره ژبه، شاکره زړه او منونکې ښځه ده .
١٧= هر ډول دې چې خوښه وي ژوند وکړه، خو پوه شه چې مر ګ ستا په تمه دی .
١٨= د غوسې او غضب سرچينه اور دی، چې ټپ يې زړه ته رسېږي او شيطان له اوره پيدا شوی دی، لکه چې وې ويل : خَلَقتَنِی مِن نارٍ و َخَلَقتَهُ مِن طينٍ ( اعراف ١٢ ) او د اور کار حر کت او نارامي ده، پـه داسې حـال کې چې د خاورې او خټې کار سکون او آرمتيا ده، په هر چا چې غوسـه غالبـه شوه، نو لـه شيطان سره ور ته والی پيدا کوي، نه له انسان سره .
١٩= راشه درشه زياتول د مينې کمښت را منځته کوي .
٢٠= ژبه د بدن تر ټولو نرمه او بې هډوکو برخه ده، کـه د خبرو پـر مهال ښـه وکـارول شي، نو ښه ده، کـه نه نو د زيان او تاوان په غولي به مو ودروي .




# د میانمار (برما) نوي ټاکنې!

# او دیو شمېر مسلمانانو هیلې....

**بشیر**

د تیرې یکشنبې په ورځ په لومړي ځل په میانمار کې [چې پخوا برما بلل کېده] د ۲۵کلن ځنډ وروسته ازادې ټاکنې وشوې. د کتونکو په اند: په نسبي ډول ور ته ازادې ټاکنې په دې وجه ویل کېږي چې له ۱۹۹۰ز کال راهیسې واک د پوځ سره وواو کیدونکي ټاکنې به د پوځ په څارنه او کنترول کې ترسره کېدې. چې له امله به یې پوځ دخپلې خوښې ګوند د ټاکنو کټونکی اعلاناوه.

داځل دآنګ سوچي په مشرۍ این ایل ډي [نیشنل لیک فار ډیمکراسي] ګوند بری ترلاسه کړی، په کوم ګوند چې د۱۹۹۰ څخه بندیز و، دنړیوالو د سختو فشارونو له امله بالاخر پوځ له خپله واکه لاس په سر شو خوبیا هم د پارلمان د دواړو جرګو لپاره د ۲۵ سلنه غړو ټاکلو واک د پوځ سره دی.

د میانمار ټاکنیز کمیسیون اعلان کړې پایلې جوتوي چې این ایل ډي[نیشنل لیګ فار ډیمکراسي] دپارلمان د دواړو جرګو ۶۶۴څوکیونه په ۳۴۸ څوکیو بری ترلاسه کړی دی.

په میانمار کې ۳میلیونه کسان درایې کاروني په شرایطو برابر وو او ویل کېږي چې ۸۰ سلنه کسانو په ټاکنو کې رایې کارولې. دخبرې سرچینو په قول : په ټاکنو کې دسیالیو لپاره څه باندې ۶ زره نوماندانو ځانونه نومولي وو، چې دهغوی له منځه ۲۸ مسلمانانو ته هم په ټاکنو کې دکاندیدو حق ور کول شوی وه.

البته کومو مسلمانانو ته چې دکاندیدو او په ټاکنو کې درایو کاروني حق ور کول شوی وه، هغوی دروهنګیا مسلمانانو د نسل پر ته له نورو نسلونو پورې اړه لري او روهنګیا مسلمانان دپخوا په څېر په ټاکنو کې دګډون او کاندیدو له حق محروم او بې برخې پاتې دي.

په دې وجه د تازه ټاکنو پاه اړه میانمار کې د میشت مسلمانانو غبرګونونه هم ویشلي وو هغه مسلمان وګړي چې په ټاکنو کې یې رایې کارولې یا ورته دکاندیدو حق ور کول شوی راتلونکي ته خوشبیني بر ښنیدل او په اندیې دازادو ټاکنو په نتیجه کې دنوي حکومت په راتلو به میانمار کې د بشري حقوقو د درناوي او لړ کیو دستونزو هوارولو لپاره د نویو قوانینو جوړولو ته لار په اسانه اومندل شي او د میانمار میشت مسلمانانو لپاره به د ترقۍ د روازې خلاصې شي، دهغوی په وینا: دمیانمار پوځي حکومت له مسلمانانو سره د زیات تعصب او کینې څخه کار اخیسته ممکن نوی حکومت دپوځي چارواکو پشان متعصب نه وي

خو روهنګیا مسلمانان د خپل راتلونکي په باب خوشبینې نلري، دهغوی په نظر میانمار کې دمسلمانانو سره د دښمنۍ او تعصب روحیې ترپخوا پراختیا مندلې، په راتلونکي کې به مسلمانان د نورو زړه بوږنوونکو ناخوالو قربانیا وي، دهغوی په وینا: دمیرمن آنګ سوچي په ګوند کې هم په لوی شمېر بودایې افراطیان شتون لري چې هغوی مسلمانانو ته دتعصب له عینکو څخه ګوري او نه غواړي چې مسلمانان دلته په ارامۍ سره ژوند وکړي.

دمیانمار حکومت لس لکه روهنګیا مسلمانانو ته پخپل هېواد کې دتابعیت حق له ورکولو څخه انکار کوي او وایي: روهنګیا مسلمانان له غربي بنګال میانمار ته ورغلي او ددې ځای اصلي اوسیدونکي ندي،

روهنګیا مسلمانان بیا وایي: دوی د پیړیو پیړیو راهیسي په میانمار کې میشت دي او یوازې دجغرافیوي قرب په وجه د دوی د ګړ دود لهجه دمغربي بنګال خلکو د ګړ دود لهجې ته ورته ده. چې په وجه یې دمیانمار حکومت له دوی سره ډېر بد امتیازي چلند کوي.
دالجزیرې په وینا: په اراکان کې روهنګیا مسلمانانو ته درایو کارولو دحق نه ورکولو په نړیواله سطحه غندنه شوې او د دې ناروا پریکړې کولو له امله د میانمار حکومت غندل شوی دی دروهنګیا مسلمانانو داتحادیې مشر وقارالدین بن سمیع الدین وویل: دجمهوریت علمبرداران ولې په میانمار کې د روهنګیا مسلمانانو دحق تلفۍ پروا نلري؟ اخر ولې اروپایي




څارونکو میانمار ته دسفر پرمهال د حکومت پرضد داپوښتنه راپورته نکړه چې ولې روهنګیا مسلمانانو ته درایې کارونې حق نه ورکوي؟ هغه دآنګ سوچي دګوند بریا ته خوشیني ندی ځکه په وینایې: پارلمان کې

۲۵ سلنه څوکۍ دپوځ لپاره ځانګړې دي، دهغوی په شتون کې په هیڅ قانون کې څوک تغیر نشي کولی دمسلمانانو مشر په دې اندیښمن دی چې د ماضې په څای د دوی راتلونکی خورابد دی ځکه دتعصب څپه په هر خوا خوره لیدل کېږي. په اراکان کې مسلمانانو رسنیو ته ویلي: چې دآنګ سوچي په ګوند کې داسې لوړپوړي مشران شته چې هغوی له مسلمانانو سره دښمني لري او په وجه به یې دآنګ سوچي په حکومت کې هم دمسلمانانو وینې داوبو نه ارزانه بهول دوام ولري. دالقدس العربي په راپور: د[رنګون مینګلا رتونګ] په نوم کلي کې مسلمانانو دبودایانو دحملو له ډاره دکلي دساتنې لپاره دپهره دارۍ نظام جوړ کړی دی څو په ناڅاپي توګه دبودایانو دبریدو ښکار ونه ګرځي.
البته ځیني کتونکي په ټاکنو کې ۲۸ مسلمانانو ته دنوماندۍ حق ورکول دافراطي بودایانو په هېواد کې دمسلمانانو لپاره دنوي امید څرک بولي، که څه هم دمسلمانانو ونډه یا برخه په اوړو کې دمالګې برابر ده، خود روهنګیا مسلمانانو پرته دنورونسلونو مسلمانان یې دیته خوشبین او مثبت بدلون یې ګڼي هغوی باور لري چې په دې سره به دوی دخپلو حقوقو ترلاسه کولو لپاره دمبارزې پرمخوړلو لپاره یوستیج ومومي، چې د نورو لږکیو توکمونو په ملتیا به دخپلو حقوقو لپاره منظم بهیر رامنځته کړای شي ۳۸ کلن محمد اکبر هیلمن دی چې دبشري حقوقو د درناوي او او اقلیتونو د ستونزو حلولو مبارزه به په میانمار کې نوره چټکه او وغځېږي او دنوي حکومت په راتلوبه دپخواني رژیم تعصب او کینې ډکه پالسیې لغوه اعلان شي.

# لاف است و گزاف، بی مایه است و پوچ

اشرف غنی شگفتی می آفریند، خبرساز می شود. در تازه‌ترین مورد، رییس حکومت به اصطلاح وحدت ملی در صحبت تلفنی با مقامات آلمانی گفته است که حکومت وی آمادگی دارد تا آن عده مهاجران افغان که جواز اقامت آلمان را نگرفته و از آن‌جا اخراج می‌شوند، تحویل بگیرد. هر شهروندی کشور با شنیدن این حرف غنی به حیرت می افتد. شگفتی‌آور است واقعاً. چرا نباید حیرت زده نشد و از کرختی بد اوضاع که همه را به زیر کشید، بیرون نیامد و به این سخن غنی تأمل نکرد؟

غنی زمانی از آمادگی دستگاه ضعیف حکومت‌اش برای تحویل‌گیری مهاجران سخن می گوید که روزانه صدها شهروند کشور، افغانستان را به قصد رسیدن به کشورهای ثانی ترک می کنند. در بیست و چهار ساعت و در طول هفته هزاران نفر (آن‌های که پول دارند و می‌توانند پاسپورت بگیرند) پشت دروازه ریاست پاسپورت صف می کشند و برای رفتن از کشوری که غنی رییس حکومت آن است، لحظه شماری می کنند. افزون بر این، ده‌ها پناه‌جوی افغان ماهانه در مدیترانه غرق می‌شوند و در صحراها تلف. اما حکومت غنی از انتقال اجساد آن‌ها درمانده است. در چنین شرایطی، درخواست برگرداندن مهاجران لاف و گزاف نیست؟

وزیر مهاجرین، اشرف غنی پس از آن‌که آلمان خبر اخراج مهاجران افغانی را اعلام کرد، گفته بود که حکومت شان از نظر امنیتی در شرایطی نیست که شهروندان مهاجرش را تحویل بگیرد. وزیر مهاجرین از حکومت آلمان خواسته بود تا با توجه به وضعیت نامناسب افغانستان، شهروندان این کشور را اخراج نکند. غنی اما در صحبت تلفنی با وزیر خارجه آلمان، حرف‌های وزیر کابینه‌اش را شخصی عنوان کرده است.

بسیاری‌ها مثل وزیر مهاجرین نه تنها به این باور هستند که رژیم کابل در شرایط فعلی توانایی تحویل‌گیری مهاجران افغان را ندارد بلکه فراتر از این، همه انتظار دارند تا حکومت از کشورهای میزبان به صورت جدی بخواهد تا دست از اخراج شهروندان افغانستان بردارند.

اگر آلمان تصمیم شان را به اجرا بگذارد بیش از هفت هزار مهاجر افغان که به دشواری به آن‌جا رسیده اند، از آلمان اخراج خواهند شد. سخن از زندگی هفت هزار نفر در میان است که چه‌گونگی سرنوشت آن‌ها ربط مستقیم به سرنوشت افغانستان دارد نه فرد خاصی.

غنی از کدام آمادگی برای تحویل‌گیری مهاجران و ارائه خدمات و تأمین امنیت، شغل و بالاخره حفظ جان آن‌ها حرف می‌زند که از چشم همه به دور مانده است؟ اگر منظور غنی امنیت است که همه می دانند بیش از هر زمانی افغانستان نا امن شده است. طالبان امروز جغرافیای بیشتری در اختیار دارند. اگر غنی از ایجاد شغل و کار در داخل افغانستان حرف می‌زند پس این همه بیکار از کجا شدند؟ اگر حکومت غنی و عبدالله عبدالله برای مردم شغل ایجاد کرده است، چرا روزانه صدها نفر از مرزهای کشور خارج می‌شوند و این صف طویل پشت دروازه اداره پاسپورت برای چه تشکیل شده است؟ و واقعیت ناخوشایند این است که حکومت بنام وحدت ملی نتوانسته است قناعت مردم را برای ماندن در افغانستان بدست بیاورد و سران این حکومت در برآورده کردن حداقل‌های انتظارات مردم ناکام مانده است. بهتر است سران حکومت وحدت ملی ! درماندگی و ناتوانی شان را در امر حکومتداری ضعیف و ناکارامد (امنیت، ارائه خدمات، شغل و..) قبول کنند. ایشان با گفتن این سخن که حکومت او آمادگی برای قبول و پذیرش مهاجران دارد، نمی‌تواند تصویر خوشایند از اداره خود ارائه کند. دهن با نام بردن عسل شیرین نمی‌شود، تلخ‌تر می‌شود. بنابراین، اعلام آمادگی بدون آن‌که کم‌ترین امکاناتی در اختیار داشته باشیم، لاف است و گزاف. بی‌مایه است و پوچ. این حکومت مسئول خلق فاجعه است. چه‌گونه خالق فاجعه‌ی که تراژیدی مهاجرت را رقم زده است می‌تواند به آوارگان فرامرزی فراخوان عودت بدهد، در صورتی که از عدم تأمین سرپناه برای مهاجران داخلی عاجز مانده است.

ضيا - حقمل

# ګام په ګام

# فتحې او بریاوې

روان کال په تېر شاوخوا پنځلس کلن جهادي بهیر کې په خاص ډول او د هیواد په تاریخ کې په عام ډول یو ډېر مهم او د مهمو بدلونونو او پرمختیاوو کال وو.

په دې کال کې ځینې داسې خاص بدلونونه را منځ ته شول چې ډېر مهم او سرنوشت سازه وو؛ د اسلامي امارت د زعامت نوې والی او د بیعتونو سلسله، د مجاهدینو بې ساري پرمختګونه او د اسلامي امارت د هغو دښمنانو ماته چې په بېلابېلو نومونو یې د مجاهدینو په ضد فعالیتونه کول، دغه ټول د دې کال له مهمو جریانونو څخه وو.

د روان کال په ترځ کې مجاهدین له ګڼو ازمایښتونو سره مخ شول چې د ځینو په اند بریالي وتل ترېنه نا ممکنه ښکارېدل خو مجاهدین د الله (جل جلاله) په نصرت او د خپل کلک عزم، توکل، صبر، وحدت، استقامت او سربښندونو په برکت سره پدې وتوانېدل چې د دغو ټولو چلنجونو سره مقابله وکړي او په پای کې بریالي راووځي.

د روان کال د دغو عمده جریانونو، د مجاهدینو د پرمختګونو او د روانو حالاتو د لا ښه روښانه کولو په خاطر مو لاندې څو نقطو ته پام اړوم.

په روان کال کې د مجاهدینو پر وړاندې ځینې عمده مشکلات او د مجاهدینو عکس العمل

۱: د امیرالمومنین د وفات اعلان: د روان کال تر ټولو لوی، ټکان ورکوونکی او د غم نه ډک خبر د مجاهدینو لپاره په ځانګړي ډول او نورو مسلمانانو ته په عام ډول د امیرالمومنین (رحمت الله علیه) د وفات خبر وو؛ د مجاهدینو او د مسلمانانو له سترګو د ثالث عمر او د نړۍ د مسلمانانو د مخلص، شجاع، صادق، صابر، امین او مجاهد امیرالمومنین په وفات د اوښکو فوارې روانې وې خو د اسلام دښمنانو خوشحالۍ لمانځلې او ویل یې چې نور نو طالبانو ته صرف د تسلیمۍ لاره پاتې ده او بس؛ خو د اسلام دښمنان له دې نه وو خبر چې امیرالمومنین (رحمت الله علیه) داسې یو لوی کاروان روزلی چې هیڅ کله به هم د هغه خط مش پرېنږدي؛ بل اخیره د اسلامي امارت د نوي زعیم په ټاکل کېدو سره د ټولو مسلمانانو زړونه ټکور شول او د اسلامي امارت فعالیتونو هم هغه شان په عادي ډول جریان وموند او د دښمنانو کید او فرېب ناکامه شو.

۲: د زعامت انتخاب: د امیرالمومنین (رحمت الله علیه) له وفات وروسته تر ټولو لویه مسله د اسلامي امارت راتلونکی او د نوي امیر د ټاکنې موضوع وه، ډېر مخلص خلک پدې اند ښېنه کې وو چې خدای مه کړه د نوي مشر د انتخاب پرسر اختلافات را پیدا نه شي او مجاهدین سره تجزیه نه شي، خو د اسلامي امارت د مشر تابه شورا په چټکۍ سره خپل رغنده رول ولوباوه او په اتفاق سره یې یو داسې امیر انتخاب کړ چې د ټولو مسلمانانو او مجاهدینو خوښ وو، مرحوم امیرالمومنین (رحمت الله علیه) په خپل ژوند کې ورته مشري سپارلې وه، د اسلامي امارت له ټولو امورو خبردار وو او د میرالمومنین واقعي جانشیني یې کولای شوه؛ د دغه کار په کامیابۍ سره تر سره کېدل هم د الله (جل جلاله) له مهمو احسانونو څخه وو.

۳: دا خلي اختلافاتو ته لمن وهل: دا چې د اسلامي امارت ګڼو دښمنانو د دې انتظار ایست چې دوی ته داسې یو فرصت پیدا شي چې د اسلامي امارت فولادي صف سره ټوټه، ټوټه کړي، او د مرحوم ملا صاحب له وفات وروسته یې دغه وخت خپل غنیمت وباله او هر لورته یې د اختلافاتو د پیدا کېدو خبرې خورولې؛ که څه هم دښمنان پدې ونه تاوانېدل چې مجاهدین سره وویشي او واحد صف مات کړي خو د ځینو هغو کسانو له نامه نه اوس هم استفاده کوي چې پخوا یې په اسلامي امارت کې دندې درلودې؛ دغه کسان چې د موازي امارت د جوړولو خبرې کوي شمېر د ګوتو له حسابه پورته نه دی، په امیرالمومنین او د هغه د ټاکل کېدو په پروسې د نیوکو لپاره هیڅ قسم شرعي دلیل نه لري، نه کوم جهادي قدرت لري او نه هم کوم سیاسي، په خلکو کې محبوبیت نه لري او نه یې تر اوسه چا خبرو ته غوږ نیولی او همدارنګه په خپلو منځو نو کې هم سره متفق او هم نظره نه دي او هره ورځ سره نور هم وېشل کېږي.

۴: حکومتي عملیاتونه: د روان کال له ابتدا نه مخکې ګوډاګي اداري هڅه درلوده چې مجاهدین د خپلو پسرلني عملیاتو له پیله مخکې داسې وځپي چې دوی پدې ونه توانیږي چې د حکومتي ځواکونو پر وړاندې لوی عملیاتونه ترسره کړي د همدې فکر د عملي کولو لپاره یې د هیواد په ځینو هغو ولایتونو کې چې د مجاهدینو فعالیتونه پکې د نورو په پرتله ډېر پراخه وو لوي او په پراخه کچه عملیاتونه وکړل چې په دغو عملیاتو کې یې د هیڅ قسم وحشت څخه ډډه ونه او د هیواد بېچاره ولس ته یې درانه مالي او ځاني زیانونه واړول خو په مقابل کې دوی هیڅ تر لاسه نه کړل نه یې مجاهدین په شا وتمبول، نه یې کمزوري او وځپل، بلکه دغو عملیاتو سرچپه نتیجه ورکړه ولس له حکومته لرې والی اختیار کړ او ځواکونه یې بې ځایه ستړي شول چې دغو دواړو ټکو د مجاهدینو لپاره د لا ښه فعالیت زمینه برابره کړه.

۵: جهاد ته د منسوبو ځینو نوو ډلو ټپلو را ټوکېدل: د روان کال په جریان کې ځینې هغه ډلې چې تازه را ټوکېدلي وو او ځانونه یې تر هر چا ښه مجاهدین او مسلمانان بلل خو له مجاهدینو سره یې بې دلیله داسې دښمني پیل کړه چې هیڅ د توقع وړ نه وه دوی د اسلامي امارت په مجاهدینو بې اساسه او بې بنیاده توره لګول او همدارنګه یې عملا له مجاهدینو سره ښکاره جګړه پیل کړه؛ په لومړي سر کې د اسلامي امارت مشرانو دا کوښښ وکړ چې دغه خبره و مذاکرې له لارې هواره شي او پدې برخه کې یې ځینې اقدامات هم وکړل، خو دغو خلکو د اسلامي امارت دغه خیر غوښتنې نظریې ته په شر، او متکبرانه انداز سره جواب ورکړ او د مجاهدینو په قتل یې پیل وکړ؛ کفري میډیا د دغو کسانو د غټې ښودلو او د دوی د تقویې لپاره ډېر پراخ تبلیغات وکړل تر څو په هیواد کې د مجاهدینو پر وړاندې یو بل موازي صف جوړ کړي او هغه بیا له مجاهدینو سره وجنګوي؛ خو لوی رب (جل جلاله) مجاهدین په دې امتحان کې هم کامیابه کړل او دغه خلک هم شرمنده او رسوا شول، د هیواد مسلمان ملت ورپسې پاڅېد، او له مجاهدینو سره یو ځای یې د دغو خلکو پر وړاندې غوښ مقاومت وکړ او د دغو خلکو کال لا پوره نه وو چې بېرته د ورکې په لار روان شول چا خپل سرونه وخوړل، څوک ګوډاګي اداري ته تسلیم شول او چا هم د تښتې لاره خپله کړه.

روان حالات او د مجاهدینو بریاوې

۱: وحدت او یو موټی والی: د اسلامي امارت د مجاهدینو د بریا او کامیابۍ یو لوی او عمده دلیل د مجاهدینو تر منځ په خپل منځي وحدت او اتفاق کې دی؛ مرحوم امیرالمومنین (رحمت الله علیه) هم پدې سبب یو کامیابه رهبر ګڼل کېده چې خپل ټول مجاهدین یې متحد ساتلي وو او د الله (جل جلاله) په فضل او کرم سره د نوي امیر تر انتخاب وروسته مجاهدینو د دې خبرې ډېر زیات خیال وساته او د امیرالمومنین ملا اختر محمد منصور (حفظه الله) لپاره یې د هیواد له ګوټ ګوټ څخه په ډېره چټکۍ سره خپل بیعتونه راولیږل او امیرالمومنین (حفظه الله) ته د لبیک په نارو سره د اطاعت غږ پورته کړ؛ او همدارنګه له هیواده د باندې هم مخلصو مسلمانانو د یو دینې

امر د پرځای کولو په خاطر د خپلو بيعتونو اعلانونه وکړل؛ د اسلامي امارت د مجاهدينو د همدې اخلاص او وحدت برکت وو چې د نوي امير تر انتخاب وروسته الله (جل جلاله) پدوی د لويو فتحو انعام ولوراوه.

۲: هيواد شموله جهادي بهير: دا چې د اسلامي امارت د مجاهدينو مبارزه د يو سوچه اسلامي نظام لپاره ده نو له همدې امله په اسلامي امارت کې د قوم، نژاد، ژبې، سمت، وطن او مذهب په نوم غير اسلامي تعصبونه ته ځای نشته د همدې حقيقت په درک سره د هيواد د بېلابېلو سيمو په بېلابېلو ژبو غږېدونکي خلک په خپلو سيمو کې را پورته شوي او د اسلامي امارت د شرعي بيرغ تر چتر لاندې يې د دين او د وطن د ګټلو او ساتلو لپاره خپله مبارزه پيل کړې ده؛ د عزم د عملياتو جريان د جهادي بهير هيوادنی توازن لا ډېر ښه برابر کړ او مجاهدينو د هيواد په لرا و بر کې، ختيځ او لوېديځ، شمال او جنوب کې يو شان پراخ تهاجمي بريدونه وکړل او د هيواد ګڼې ولسوالۍ او سيمې يې د شرير دښمن له وجوده تصفيه کړل او دغه جريان اوس هم په خورا چټکۍ سره روان دی.

۳: مجاهدين د ولايتونو په مراکزو کې: د عزم د عملياتو په جريان کې د الله (جل جلاله) په فضل سره هغه وخت هم را ورسېده چې مجاهدين د ولايتونو تر مراکزو را ورسېدل پدې لړ کې يې د کندوز ولايت د مرکز د فتحې بر سېره د ګڼو نورو ولايتونو په مراکزو بريدونه وکړل او ګوډاګيان يې له سختې وارخطايۍ سره مخ کړل چې بل اخيره د غزني، زابل، هلمند، بغلان، فارياب، فراه، سرپل او بدخشان د ولايتونو ګوډاګۍ چارواکو خو د ارګ حاکمانو ته خبرداری ورکړ چې د دوی ولايتونه د محاصرې په حال کې دي او که مرسته ورته ونه رسېږي ممکن چې دغه ولايتونه به سقوط وکړي.

۴: د دښمن دفاعي حالت: لکه مخکې مو چې وويل د کابل د ګوډاګۍ ادارې چارواکو کوښښ کاوه چې مجاهدينو د عملياتونو په واسطه وځي او خپلو عسکرو ته روحيه ورکړي او له دفاعي حالت څخه يې وباسي خو کله يې چې دعملياتو په جريان کې د مجاهدينو کلک ګزارونه وخوړل نو دغه اټکل يې هم کوم نتيجې ته ونه رسېد او اوس خو د لوی رب په فضل دوی خپل دفاعي حالت هم له لاسه ورکړي او د مجاهدينو د بريدونو له وېرې يې خپل هغه قوي ښسونه، قرارګاوې او پوستې پرېږدي او د دښتې لارې خپلو وي چې دوی په ډېر مصرف باندې جوړ او په ډېرو ځاني تلفاتو باندې يې ساتلي وو.

۵: د يرغلګرو خوارۍ په اوبو لاهو شوې: په هيواد د يرغلګرو د وحشيانه بريد وروسته دوی کوښښ وکړ چې د اسلام دغه کفر نه منونکی ځمکه د خپل دايمي مستعمره هيوادونو په ډله کې راولي او هر هغه څوک بايد له منځه يوړل شي او ووژل شي چې د دوی حاکميت منلو ته تيار نه وسي؛ د هيواد هغه سيمې يې چې د دوی پرورانديې نسبت له نورو نه پکې سخت مقاومت کېده په خوار وحشيانه طريقې سره وځپل او داسې عملياتونه يې ترسره کړل چې زرګونو داخلي او بهرنيو، ځمکنيو او هوايي ځواکونو پکې شموليت درلود دغه راز يرغلګرو د دې لپاره چې د مجاهدينو روحيات وځپي پراخ تبليغات هم وکړل؛ د هلمند ولايت او په ځانګړې ډول د دې ولايت مارجه او موسی کلا ولسوالۍ د دې لويو معرکو اصلي ميدانونه وو؛ يرغلګرو له عملياتو وروسته په دغو سيمو کې په بېلابېلو نومو د خپلو ګوډاګيانو ځالکۍ جوړې کړې او دا يې انګېرله چې نور به هيڅ کله هم دغه سيمې د دوی دښمنانو لاسونو ته نه لوېږي خو د لوی رب په نصرت سره د هلمند د ګڼو نورو ولسواليو په شان موسی کلا هم فتح شوې او مارجه او ورسيرمه نورې ولسوالۍ د فتحې په درشل کې ولاړ دي، لوی رب (جل جلاله) د کفارو هغه مالي او ځاني زيانونه ټول عبث وګرځول.

۶: بيا تجهيز: لکه څنګه چې مجاهدينو په ټول هيواد کې پراخ بريدونه پيل کړي دي او هره ورځ له دښمنه د دوی مرکزونه، ولسوالۍ، ښسونه او نور دولتي ادارې نيسي نو په همدې سبب په دغو فتحو کې مجاهدينو ته په پراخه کچه غنيمتونه هم لاسته

ورځي؛ مجاهدينو پدې غنيمتونو کې خفيفه او ثقيله وسلې، د مختلف النوعه اسلحو بې حسابه مرمۍ، ډول ډول نقليه وسايط او نور ډول ډول شيان نيسي، چې بيا د همدې غنيمتونو په واسطه د دښمن پر وړاندې کار اخلي او تر ډيره حده



د همدغو غنيمتونو په واسطه مجاهدين تجيز کېږي او همدارنګه دغو وسايلو دښمن پر وړاندې د مجاهدينو په کاميابيو کې عمده رول لوبولی دی.

۷: منظم جهادي بهير: پدې وروستيو کې مجاهدينو يو بل کامياب رول هم ترسره کړی دی او هغه هم منظم او هماهنګه جهادي بهير دی؛ کله چې مجاهدين د يو ولايت په يوه ساحه عمليات پيل کړي نو د همدې ولايت په نورو ساحو او همدارنګه څنګ لوريو ولايتونو کې نور مجاهدين هم خپل عملياتونه پيل کوي دا دې هدف لپاره چې له يوې لورې د دښمن توجه ګډه وډه شي، مورال يې کمزوری شي او همدرنګه عمليات کونکي مجاهدين د کوم فشار پرته خپل فعاليتونه په ارامۍ سره تر سره کړي، همدارنګه په ولايتونو او زونونو کې د قطعو جوړول هم په جهادي بهير کې هم منظم والی راوستی دی او هم د دښمن د ځيلو لپاره ډېر کاري تمام شوي.

۸: د سيمو ساتنه: پدې وروستيو کې چې مجاهدين هره ورځ د دښمن مراکز نيسي، سيمې تصفيه کوي نو په عين حال يې د دغو سيمونه دفاع ته هم توجه کړې ده او د اکثرو هغو سيمو کنترول اوس هم له مجاهدينو سره دي چې دوی د عزم عملياتو په جريان کې نيولي دي؛ که څه هم د مجاهدينو له فتوحاتو وروسته ډېر وار دښمن کوښښ کړی دی چې دغه سيمې بيرته تر خپل کنترول لاندې راولي خو د مجاهدينو د مسلسلو او پرله پسې بريدونو په نتيجه کې دوی پدې نه دې توانيدلي چې دغه سيمې بيره ونيسي.

۹: ولسي ملاتړ: د الله(جل جلاله) په فضل او کرم سره او د خپلو نېکو اخلاق په برکت سره مجاهدين پدې توانېدلي دي چې د مسلمان ملت پراخ ملاتړ راخپل کړي او هغوی پدې جهادي بهير کې خپل همکاران وګرځوي؛ له اميرالمومنين ملا اختر محمد(حفظه الله) د ولسي وګړو په پراخه کچه د بيعتونو لړۍ، د مرحوم اميرالمومنين ملا محمد عمر مجاهد(رحمت الله عليه) په وفات د دوعا، تعزيت او غمـــرازۍ پـــراخ پروګرامونــــه او د مجاهدينو سره د همکارۍ په تور د يرغلګرو او ګوډاګيانو له لوري د ملکي وګړو وژل او ازارول له مجاهدينو سره د ولس د همکارۍ څو څرګندې بېلګې دي.

۱۰: له مجاهدينو سره يو ځای کېدل: دا چې د دښمن خوند او مزه وتللې او د خپل بقا وروستی سلګۍ وهي نو له همدې کبله هغه خلک چې د کابل د ادارې په مختلفو ارګانونو کې کار کوي، د حکومت د دغه حلت په ليدو سره زړه تورن شوي، ځينې نورو بيا حقايق درک کړي دي او نه غواړي چې د مجاهدينو پر ضد پدې فاسده اداره کې کار وکړي نو له همدې کبله هر مياشت سلکونه دولتي عسکر، ټيټ رتبه او لوړ رتبه مامورين او د حکومت پلوان له حکومتي دندو لاس په سر کېږي، او له حکومته خپل بېزاري اعلانوي يا خو خپل عادي ژوند ته ستنېږي او يا هم له مجاهدينو سره يو ځای د دې نظام پروړاندې مسلح جهاد ته مخه کوي.

درو حانیت دنگ منار، لوی محدث شیخ القران والحدیث

# مولانا عبدالستار جان

رحمه الله

مولوي محمدګل سعید

شیخ الحدیث مولوی عبدالستار د خپل وخت لوی صوفي او نومیالی عالم ؤ، چې خپل ټول عمريي د دیني علومو په زده کړه، ښوونه او د دین په خدمت کې تیر کړی دی. دی د شیخ الحدیث مولوی عبدالغفار زوی د شیخ الحدیث مولوی عبدالحنان لمسی د ملا احمد ګل کړوسی په خته حسین خیل په ۱۳۲۸ل کال مطابق (۱۳۶۹ق ۱۹۴۹م کال) د ګران هیواد افغانستان د کابل ولایت د موسهي ولسوالۍ د حاجي خیلو کلي په یوه عالمه او فاضله کورنۍ کې زیږیدلی دی.

**زده کړې یې:**

د خپلو زدکړو په اړه خپله مرحوم شیخ صاحب له څرک مجلې سره د یوې ځانګړې مرکې په ترڅ داسې فرمایلي وو: ابتدایي زدکړه مو د خپل والد محترم (حضرت مولانا عبدالغفار اخوندزاده) نه د (عبدالروف په کلا کې) چې مشهور علمي مرکز وو ویلي او په دې ځای.

کې زمونږ جدّی امجد تقریبا څلویښت کاله تدریس کړی وو او وروسته بیا زمونږ والد محترم تقریبا څه کم دیرش کاله هلته تدریس ترسره کړ، ابتدایي زدکړه د فقهي ترشرح وقایه پورې او صرفو کې ترصرف میرپورې له ده وویل، وروسته بیا له ډیر محترم او شفیق استاد محقق، مدقق علامه (مولانا محمد عبدالقدوس جان صاحب) نورالله مرقده سره ملازمه له زنجاني نه تر بخاري شریف پورې، یعني ابتدایي، وسطی او انتهایي زدکړې مو ټولي له هغه څخه ترلاسه کړې او سواد هدایه نه چې مکمله هدایه مو د خپل تره مبارک جناب (شیخ القران والحدیث محمد نبی جان) اخوندزاده چې مشهور د سهاکو په اخوندزاده وو وویلي، فراغت او د حدیثو دوره مو د کابل ولایت د ګذرګاه په غوثیه مدرسه کې له جناب شیخ صاحب عبدالقدوس جان صاحب نه وکړه.

شیخ الحدیث مولوی عبدالستارجان چې کله د مروجه دیني علومو د زده کړې څخه فارغ شو نو په تدریس یې شروع وکړه او په مختلفو ځایونو کې یې د دیني علومو په زړه پورې تدریس وکړ چې ټوله موده د تدریس یې ۴۱ کاله کیږي.

**د تدریس ځایونه یې دا دي:**

(۱) د حاجي امین الدوله مدرسه د کابل په کارته نو کې.

(۲) د قلعه نصرو مدرسه د پروان په کوه دامان کې

(۳) دارالعلوم اسلامیه عربیه د پاکستان د ضلع هنګو په دوړړی کې

(۴) د مولوی نقیب الله صاحب مدرسه د پیښور په څمکنو کې.

(۵) دارالعلوم سراج الاسلام د هنګو په کاهي کې

(۶) جامعه منبع العلوم په میرانشاه کې.

(۷) منهاج العلوم مدرسه د هنګو په نریاب کې.

(۸) تعلیم القران مدرسه د ضلع اټک په ویسه کې

(۹) جامعة العلوم الاسلا مية دهنگو په زرگري کې.

ارواښاد شيخ صاحب دظاهري علومو تر څنګ په تصوف کې هم لوی لاس درلود.ده دجناب شمس العارفين مولانا محمد اکرم بدخشاني (داملاصاحب) عليه الرحمة اودجناب مولانا محمد اسحاق افغاني (مردان خليفه صاحب) لاس نيوی کړی ؤاوپه څلورو واړو طريقو کې دخلافت لوړ مقام ته رسيدلی ؤ.

ارواښاد شيخ صاحب خپل ټول عمردديني علومو په زده کړه ،تدريس اودمسلمانانو په باطني اصلاح کې تيرکړی ؤاوبې شميره مريدان اوخليفه ګان يې درلودل چې ديوڅوشاګردانونومونه يې دادي:

(۱) شيخ الحديث مولينامعلم جان حنفي د پکتيا

(۲) حضرت مولينانورالله نوراني دشيخ صاحب ورور

(۳) شيخ الحديث حضرت مولانا ميرمحمدفاروق دلوګر

(۴) شيخ الحديث مولينامولاجان مطمئن

(۵) شيخ الحديث مولوی احمدشاکر

(۶) شيخ الحديث شهيدمولوی زين العابدين دپکتيا

(۷) حضرت مولیناضياءالحق دموسهي

(۸) مولوی عنايت الحق دموسهي

(۹) شيخ الحديث مولوی مسلمين راشد

(۱۰) شيخ الحديث مولينانصيب خان اورکزئ

(۱۱) شيخ الحديث مولیناطالب جان اديب

(۱۲) شيخ الحديث مولينابشيراحمدمروت

(۱۳) حضرت مولیناعزت الله احمدي

ارواښاد شيخ صاحب دوه کرته دحج فريضه اداکړې وه اودرې ځلې يې دعمرې سعادت په برخه شوی دی.

نوموړی متقي،پرهيزګاره اومتواضع عالم ؤ.په نقلي اوعقلي علوموکې يې لوی لاس درلود.دنيکواخلاقواوښواوصافوخاوندؤ.تواضع ،دنفس انکساراونرم طبيعت يې درلود.له هرچاسره يې ښه اخلاق اودشفقت نه ډک چلندکاوه.ددوی کورنۍ په ټول هيوادکې په علم اوعرفان مشهوره ده اوخلک ورته داحترام په سترګه ګوري.

ارواښاد شيخ صاحب د ټولو فنونو جامع، په معقولو او منقولو کې د نوم خاوند و، د هېواد په لرو برکې شاګردان لري او زياتو خلکو ورڅخه استفادې کړې دي .دی دښه خوی، نرم طبيعت، رسافکر او فصيح نطق خاوند ؤ، خوږه ژبه، ورين تندی او په خلکو کې يې خورا محبوبيت درلود.

**تاثر:**

دشيخ المشايخ علامه ، شيخ القران والحديث عبدالستارجان نورالله مرقده دلوړ علمي او هراړخيز شخصيت په باب دهيواد يوتن مشهور مجاهد عالم شيخ القران والحديث مولنا محمداسماعيل رحماني صاحب داسې وايي : له جناب حضرت شيخ عبدالستارجان رحمه الله سره ما له ديرشو کلونو ډير نيږې معرفت درلود ، الله تعالی هغه ته ډير کمالات ورکړي وو ، علمي کمال يې داوه چې شيخ صاحب زيات کلونه دروسانو اوکمونستانو په خلاف په برحق جهاد کې تيرکړل ، چې تدريس ترينه په دغه اوږده موده کې پاتي شوی وو ، خو چې کله دهجرت په ديار کې دکهي ( سراج الاسلام ) مدرسي کې مدرس شو ، په اول کال اهم کتابونه لکه ( سنن ابی داود ) په حديثو کې هدايه شفع په فقه ، صدرا په حکمتو او حمدالله په منطقو کې ورته حواله شول ، الله تعالی ورته دتدريس داسې قوت او امتيازورکړ چې په اول کال يې سوونه طالبان په ځان راټول اودمدرسي په ټولو استادانو کې دحضرت شيخ صاحب خاص نوم وو ، بيا چې کله داسلام او جهاد لوی خادم

، حضرت مولانا جلال الدين حقاني حفظه الله ، دميرانشاه مشهوري مدرسې ( منبع العلوم ) ته دحديثو داستاد په حيث دعوت کړاوله هغه وړاندې هلته شيخ الحديث مولانا شيرعلي شاه صاحب دحديثو لويه دوره کوله ، شيخ عبدالستارصاحب څوکاله هلته لويه دوره طالبانو ته په ډير شوق او اخلاص ولوسته چې په حديثو کې دبيساري علمي تحقيق او فصاحت له وجې الله تعالی ډير شهرت او مقبوليت ورته ن صيب وګرځاوه ، له منبع العلوم څخه ورسته بيا شيخ صاحب ، دزرګري دارالعلوم مهتمم خپلې مدرسې ته راوستلو ، هلته يې له لسو کلونو زيات دحديثو دوره طالبانو ته وويله چې دشيخ صاحب دعلمي تحقيق ، معنوي خصوصيتونو له وجې دزرګري مدرسي لويي دورې په ګرد چاپېر کې بيساری شهرت او مقبوليت پيدا کړ.

دغه راز حضرت شيخ صاحب ، له ډيره وخته ناروغي درلوده ، خو ډير صابر او ذاکر وو له چاسره به چې مخ شو ، له محبت او الفت نه ډک مجلس به يې ورسره کاوه ، دمرض شکايت به يې نه ورته کاوه ، دتقوا او معنوي کمال اندازه يې بايد لدې څخه معلومه کړو چې په جنازه او دفن کې يې څومره خلکو برخه اخيستي وه چې شمير يې زرهاوو تنو ته رسيده . الله تعالی دې دهغه ټول ديني ، جهادي او علمي خدمتونه قبول ، فيوضات اوبرکتونه دې دايم اوساري اولوړ اخروي انعامات دې دهغه نصيب ورګرځوي ، امين

**مړينه او هديره:**

اروانباد شيخ صاحب د۷۲کلونو په عمر د۱۳۹۴ل کال داسد په ۸مه دپنجشنبې په ورځ چې د۱۴۳۲ق کال دشوال دمياشتې له ۱۴مې سره سمون خوري داوږدې ناروغۍ نه وروسته دپېښورپه رحمان روغتون کې په حق ورسيد ،دهنګود خسارې کيمپ په جهازميدان کې يې جنازه دمشرزوی مولوی عبدالرحمان رحماني په امامت په داسې حال کې اداکړې شوه چې زرګونو عوامو او خواصويې جنازه کې ګډون کړی ؤ ،بيايې جسدله هغه ځای نه خپل هيوادته يوړل شواودکابل ولايت دموسهي ولسوالۍ دقلعه عبدالرؤف په لويه هديره کې دخپل استادشيخ الحديث مولوی عبدالقدوس جان ترڅنګ خاوروته وسپارل شو.

**اولادونه:**

اروانبادشيخ صاحب پنځه ځامن درلودل ،چې نومونه يې دادي:

(۱) مولوی عبدالرحمان رحماني
(۲) مولوی لطف الرحمان حنيف
(۳) مولوی سعيدالرحمان شاکر
(۴) مولوی عنايت الرحمان عارف
(۵) مولوی ضياءالرحمان فاروقي

داروانبادشيخ صاحب دوروڼو نومونه دادي:

(۱) حضرت مولاناعبدالجميل صاحب
(۲) مولوی نورالله نوراني
(۳) مولوی محمد سردار
(۴) مولوی فيض الرحمان
(۵) مولوی رحمت الله
(۶) مولوی منيراحمد قادري





# ګلځونه

عبدالعلي نسل

## انقلاب د کړاوونو سلسله ده

انقـــلاب د کړاوونـــــو سلســـــله ده
ارام ځـــای تـــه نیــږدې شــوې قافلـــه ده

پـــه حمـــدونو مـــو لمـــانځلې دې بریـــاوې
مـــوږ پـــه هـــر غـــم کـــې ویـــلې حوقلـــه ده

پـــه طـــاغوت مـــو د جـــالوت ســـبق تکرارکـــړ
لـــــه داود بابـــــا راپاتــــــه مورثــــــه ده

لــــه هلمنـــــده راخـــوځیږي هلمندونـــــه
پـــه میونـــدکې لا ژونـــدۍ هغـــه ټپـــه ده

آفـــرین صـــدآفرین دربانـــــدې وایـــــم
مجاهـــده ژونـــد دې مســـته حماســـه ده

چـــم دغـــرب لـــه شـــیطانانو پـــه امـــان شـــو
اوس دبـــیس دبـــرج پـــر سر ســـپینه جنـــډه ده

ربـــه تـــه دإمـــارت حفاظـــت وکـــړې
د تســـــل د ارمـــــانونو خزانـــــه ده

# مشالونه

دغرونو پر لمنو پرهواره مشـــــــالونه
دې کلي کې بلیږي تر سهاره مشـــــالونه

نه خپله شوه لیلا نه دمجنون اروا مړه شـــوه
لا ځـــــو یې خمار ساتې انتظاره مشالونه

پرون دزلفو سیوري پر لمبو باندي خـــــواره وو
نن ځکـــه پرګـــودر ښـکاري بې شماره مشالونه

دمیني دپتنګ سینه لا نه ده پخه شـــــوې
لا اوس یې هم راخیژي له پرهاره مشالونـــــه

نري نري لوګـې دي شـــوک ویده دی پرسکروټو
شیریني! سپیلني شول ستا لپاره مشـــالونه

شفقه پرګـــــرېوان دي لا دېر غشي دي ټـــومبلي
په غېږ کې دي خنګیـــــــــږي بې ازاره مشالونه

ترسوي چنار لاندي غلي غلي ستر ګکونــــــــه
انځـــــور وو لکه ستا دســـــترګو یاره مشالونه

دمیني لیوني لکه چې تېر وو پدې پلونــــــــو
ذاکره ! لګیـــــــدل پردغه لاره مشالونــــــــه

## څلوریزه

د چا په انتظـار ده کــه امیـل یـې دی ورک کـړی
پــه هـر قـدم ودرېـږي تـر ګـودره ځـي راځـي

دا پېغلـه خـو کـټ مـټ ده لکـه خـور د ملالـۍ
راوړي زلمـو تـه غشيـ تـر لښـکره ځـي راځـي

## زیری

مولوي رضوان الله (فیضاني)

که خدای کړي د ستم شپې په سهر باندې بدلېږي
زمونږ د پاکو هیلو گل غوټۍ به وغوړېږي

دا تورې تاریکۍ به رب په خپل فضل رڼا کړي
یو روڼ د پیوستون ځلانده لمر راپورته کېږي

فضا به وي رنگینه د بلبلو به نغمې وي
زمونږ ویجاړ چمن به په گلونو ابادېږي

ظالم به شي مختور نور به د ظلم جام نسکور شي
سرونه د بې دینو به خنجر باندې غوڅېږي

غمونه به شي ورک د آزادۍ دوران به راشي
ښایسته سپین بیرغونه به په لر او بر رپېږي

تر څو چې حاکم نه کړي د الله نظام سپېڅلی
تر هغو به غازیان په سنگرونو کې جنگېږي

بس دا د ( فیضاني ) پر زړه له وخته لوی ارمان دی
چې بیا د حق لښکر تر اندلسه ورسېږي

## ذکر خدا و روح مؤمن

آب و هوا گر نرسد سبزه را
خشک شود، سبزه نماند بجا

روح و دل مؤمن پرهیزگار
زنده وشاد است به ذکر خدا



گل زیبا زدرخت کنده شود
رنگ وبویش رفته پژمرده شود
قلب و روح مؤمن نیکو سرشت
چون ز قرآن دور شد مرده شود

## دنوي افتخار لارې

سعد کټوازی

| | |
|---|---|
| په تورو نیمو شپو مې د سهار لارې څارلې | ولس ته مې د نوي افتخار لارې څارلې |
| هیوادمو د خندق له جنگه هم لوی اشر وخوړ | ولس مو د دلدل او ذوالفقار لارې څارلې |
| چې وېخوړ په ککره په گونډو شو په میدان کې | بادار او غلام هم دا سې وار لارې څارلې |
| هیوادچې رانه خرڅ کړي او د غرب گټې خوندي کړي | غلام خو د پردو د استعمار لارې څارلې |
| ویده شه غلیمگیه د آرام ساه پکې واخله | یو ښکلي فدایي نن د دې ښار لارې څارلې |
| راستون شو سپین لښکر لړتم د فتحې په سنگر کې | دښمن باندې یو ستوري د گوزار لارې څارلې |
| متین عزم او هوډ یې په آرامه تر منزل وړي | ملت دا براهیم هم دا نگار لارې څارلې |
| دستورو په اشرمو د شیطان څلي راړنګ کړل | زلمو د سر په بیه د دې کار لارې څارلې |
| گوا ښېرې دې زندان او زولنې پروا مې نشته | د حق چیغه مو کړې موږ د دار لارې څارلې |
| غزني او کندهار کې چې یې ماتې زولنې کړې | جذبو نن د کابل او د مزار لارې څارلې |
| د سعد ضمیر روند دی چې غزل کې یې نه ستایي | غیورو د کندز د طالب یار لارې څارلې |

# تاريخي حقايق

شيخ الحديث اسحاقزی

همدا علت شو چې ددې ناخوالو دمخنيوي پخاطر دکندهار معروف څخه د سپين بولدک له لارې يو بل خوځښت (دطالبانو د اسلامي تحريک ) په نامه را پيدا شو که حقيقت ته تسليم شو او د الله جل جلاله ددين په خاطر دملت وقربانيو ته وګورو او تريونيم مليون شهيدانو زيات او په دغه رقم سره معلولين او په لکونو معدومين او تر پنځه مليونو زيات مهاجرين او دلکونو په شمير داخل دملک کنډې دکورونو او کليو څخه شړل شوي خلګو هيلو ته متوجه شو او خپل په ګريوان کې سرټيټ کړو او له تعصب ، حسد او کينې څخه لرې او حقيقت وليکو نو دا تحريک خو دهغو زړه دردېدلو مجاهدينو په رهبرۍ سره پيل شو ، چې په جهاد او مقاومت کې ئې پوره او رغنده ونډه لرله ، او د دوی پيدا ايښت ددې شومو او بدبختو ټوپکيانو دعملونو زيږنده وه له حقيقت څخه به ليرې نه وي.

د تحريک لمړني مقصد خو هم د څو محدود و لارو خوندي کول ،حتی پخپله ددې تحريک درهبرانو هم دا اراده نه وه چې حکومت داري او د ټول ملک سياسي او اداري نظام پخپل واک کې راولي، خو الهي ارادي او حکمت نور څه وکړل، ټول ملت ددې بدې هيولا څخه دخلاصون پخاطر و دوی ته ښه راغلاست ووايه، او په مادي او معنوي لحاظ يې ددې تحريک مرستې ته ور ودانګل. په ډير کم وخت کې ډيرو لږو امکاناتو سره خو ليکن په پوره يقين او پخې عقيدې دملک مرکز(کابل) ئې تر خپلې اداري لاندې راوست. او دغه رنګه دملک د پاتې برخې د کنترول لپاره هيله او هڅه تپانده سوه، سره لدې چې ددنيا او د شر او فساد د ټولو شيطاني قوتونو يوځای کيدل د دوی په مقابل کې بيا هم د دوی په عقيده او عمل کې کمزورې محسوس نه سول، او څومره بې شماره دسيسې ، توطيې او سياسي چالونه چې د دوی د وړاندې تګ مخه ونيسي ونه توانيدله

په کابل کې دننه دحکومتي ادارو د کارکولو سامانونه او ټول هغه شيان چې انتقاليدل، چور او چپاول سول، حتی پر سرکونو باندې د برقي ښاري سرويسونو دبرق ستنې هم اره او د ولډنګ پواسطه پريکړه سوې ، حکومتي کارخانې او دهغوئ ماشينونه پرزه او خرڅ سول حتی د جنګلک دکارخانو همدا حال سو ، او اوسپنې روسې ساخت ګاډرونه تر منګلو ، خوست، پکتيا ، لوګر او دلاهور د اوسپنو د بټيو خوراک سول، او د بګراميو دچرګانو د توليد او دچينايې ټوکرانو فابريکې د اوبدلو دماشينو پرزې خو د فيصل آباد ترکارخانو پورې ورسيدل، دارنګه د ټول افغانستان ټول حالات هم د کابل په شان وه، په منکراتو کې خو دا توری او شرميدلې دورې دافغانستان ( ۵۰۰۰ )کلن تاريخ وشرماوه، دمکرويانو د څلورم او پنځم منزل څخه افغاني باعزته پيغلو دخپل عزت دساتنې او د ټوپکيانو دشر او فساد څخه دخلاصون له وجهې ځانونه ومځکې ته راوغورځول، بې فرهنګه ناولو وسلوالو دهيواد په ځينو برخو کې په ډير افتخار سره دهلکانو سره ( ۲۸۰۰ ) لکو دوخت د پيسو په مقابل کې علناً ودونه وکړل، په دې ناولې دوره کې دسپيڅلو عقيدو نه درناوئ، او ملت د فرهنګ ،عنعناتو او

انساني روایاتو سپکاوي تر حد زیات شو، د وطن دنیم ځوانو هلکانو ګنبت او ګذار تر خپلو ګورونو پورې محدود شو. خصوصاً د کندهار او سپین بولدک ترمنځ پر لویه لار باندې، په ټول افغانستان کې اختناق، سړی تښتونه، وژنه او ټول غیر انساني او اسلامي منکرات خپل اوج ته ورسیدل، نو ځکه بدولون ته زیات ضرورت لیده کیده،

دطالبانو د اسلامي تحریک سره مقابله کونکي دشر او دفساد قوت بانډوته غربي او ځینو ګاونډي هیوادونو مادي، لوژستیکي اوپریمانه نظامي کمکونه رالیږل، پدې توطیه کې جنوب غربي ګاونډي هیواد او دشمال دوه ګاونډي هیوادونه ډیر دخیل وه.

سربیره پر دې دملل متحد تر چتر لاندې اداري هم د شر او فساد اداره په رسمیت پیژندل سره لدې چې بین المللی اداري ټولې د افغان مظلوم ولس دکړاونو څخه خبرول او دا بربریت ئې پر مظلوم ولس جائز ګڼه او د تیرې مفسدې او د بشریت ضد اداري کړه وړه هم ښه ورته ثابت وه، خو بیايې هم د اسلامي شریعت څخه د ویرې او ډار پخاطر د نوې اداري په رسمیت پیژندلو څخه انکار کاوه.

او دا هم دوې لره ثابته وه چې افغانستان د ملوک الطوائفي نظام څخه خلاصون وموند، او دغه رنګه د افغانستان د تجزئي مخه ونیول سوه، او د افغانتسان په داخل کې تر یوې اندازې پورې ډاډمن امنیت برقرار سو، او دولسې وګړو په یو ډول دهوساینې احساس کاوه، سره له ډیرو اقتصادي او مادي مشکلاتو چې ملت او اداره ورسره مخامخ وه، خو بیا هم دافغان ویاړلې اولس ارادې ټیټې نه شوې او د پوره صبر او پیاوړتیا څخه یې کار واخیست، په حکومتي ادارو کې د اداري چارود پرمخ بیلول لپاره د تیرو رژیمونو اکثره مفسد ټیټ رتبه مامورین موجود وه، لیکن څرنګه چې قیادت اصلاح وو، نو اداري فساد هم څه نا څخه الحمد الله کم وو، پدې وخت کې د شمالي ټلوالئ دمشر معمائي قتل او لږوروسته دامریکا دغرور او تکبر دماڼیو نسکوریدل ددې سبب شو چې امریکا او دغه ملاتړې چې له پخوا څخه ئې

دګران افغانستان او اشغال لپاره لیځې رانغښتي وې، په حرکت راغلل، که دلوستونکو په یاد وي نو امریکا خو څه موده وړاندې هم په یوا و بل نامه دخوست پر (ژورې) نومې ځاې خپل احضاراتی کروز او پاتیریاتت میزائل وار کړی وه. او تر دې وړاندې ئې دافغانستان جغرافیائی مساحت انچ انچ ځانته معلوم کړیوو، نو ځکه خو پداخل د افغانستان کې داراضی او مځکني دځرنګوالئ پوره معلومات لاره، نو هم هغه وو چې دهوا او ځمکې له لارې پر افغانستان بې شرمانه او یو مستقل هیواد باندې د ټول انساني کرامت پر خلاف تعرض شروع کړ، خو که حقیقت ولیکونو که د امریکائې تاړاک مقصد اسامه بن لادن او دهغه ملګرې واې نو دهغو داوسیدلو ځای خو هرچاته معلوم او ثابت وو، نو ځکه خو پر ټول افغانستان دځمکني او هوا له لارې دعسکری تعرض ضرورت نه وو، خو لیکن د صلیبیانو حشر پر افغانستان باندې د ډیرمخو درلودونکې وو.

اول: دامریکا او صلیبیانو عداوت او دښمنی دمسلمانانو او د الله جل جلاله ددین سره.

دوهم: چون پخپل وخت کې په ټوله دنیا کې یوازې اسلامي حکومت په افغانستان کې وو، او د هغه دله منځ وړل.

دریم: د ټوله نړی څخه چې دمسلمانانو امید او هیله وه افغانستان ته وه دهغه ختم کول.

څلورم: له سمندر څخه بیا تر اسیا میانه پورې د دوې دبیلا تکلیفه نقل او حرکت.

پنځم: دافغانستان په شمول د ټولې آسیامیانه د ترځمکې لاندې زیرمو او معدنیاتو ته لاس رسئ.

شپږم: په افغانستان کې دا سلامي تحریک ځپل په حقیقت کې د ټولې دنیا د اسلامي تحریکونو د ځپلو په معنی سره وو.

اووم: په راتلونکې کې د روسې دسیاسې، اقتصادي او عسکري تحرکاتو مخنیوی.

اتم: په ټوله نړی کې دخپلې بدمعاشې، بربریت او ظلم پواسطه دجهان د ټولو رژیمونو ویرول او ترخپل اداري لاندې راوستل.

په هيواد کې چې پر ګران افغانستان د امريکائيانو او صليبيانو په ټول طاقت او قوت سره د ټولو مدرنو طيارو او جهازونو بمبار شروع شوه، همدا رنګه ئې خپل ټول ميزائل او ليرې ويشتونکې راکټونه له بحر هند څخه بلاوقفې پر افغانستان اورول، او د ځمکې له لارې خو بيا هغه مفسدو، خرڅ شوي پاټکيانو او د شر او فساد ليوانو چې ډير وړاندې ئې خپل ځانونه د جهنمې سازمان ( C.I.A ) په لومو کې رانغښتي وه له څو طرفونو څخه تعروضونه شروع او افغانستان ته راننوتل او يا هم د امريکائي ترانسپورتي طيارو پواسطه د افغانستان په مختلفو غريزو سيمو کې له هوا څخه راکوز شول، د شمال له لورې چې نا افغانانو د پياده فوځ په شکل سره د هوائي قوتونو په مرسته کوم تعرض شروع کړ، همدا رنګه د سپين بولدک له لارې او د ايران څخه د نيمروز او اسلام قلعه له لارې کوم شرير مفسدين چې له پخوا څخه ددې ګاونډي ليکن دښمن هيواد له لارې افغانستان ته راننوتل، او امريکا او صليبيانو په خپل ټول هوائي قوتو سره د افغانستان په داخل کې د خپل نظر وړ ټوله هغه ځايونه چې د مقاومت خطره و دوي ته موجود وه په ډير بې رحمانه ډول سره بمباري کوله او له منځه وړل، په حقيقت کې دا هغه ستر ناورين وو چې حتی د اريانا په نامه د ملکي هوائي شرکت هغه پاتې شوني څو باله طياري هم پدې ناتار کې له منځه ولاړې او په هيرو تبديل شوي، لدې وحشيانه او غير انساني بمبار څخه دعامه ملکيت نظامي او ملکي ټولې وداني خرابې او له ګټې اخيستو څخه ووتې، او انساني غميزه خو لدې نه هم بتره وه، متعارضو اشغالګرو ته خو دعامو او خاصو افغانانو له منځه وړل خو ضروري او فرض ګڼل کيده، حتی چې د جهان ټول اوسيدونکي او ميډيا خو پردې بې باکانه او له شرم څخه ډک عمل چې په هيڅ انساني او شرعي موازينو کې د هغه جنايت ساری هم ندې ليدل شوی، چې د اشغالګرو هوائي ځواکونو څخه دا غوښتنه کيده چې نور هم بمونه درانه، زيات او خطرناک کړی، ددې شومو او بدبختو منافقو شيرو خو دا ګمان کاوه چې جنت هم د اشغالګرو سره په ملګرتيا کې زمونږ نصيبه کيږي، حال دا چې دا ملګري د ابليس، دجال او د الله جل جلاله د وعدی مطابق ابدي دوزخ او ددنيا او آخرت رسوائي ده او بس، دا شرير د خپل ابتدأ څخه مزدور، ايجنټ او پر بيګانه وو خرڅ سوی اشخاص وه، لکه مخکې د هجرت او جهاد تر نامه لاندې ليډري او مقاومت سرپرستي.

د فارسي متل دي چې وائي (عاقبت ګرګ زاده ګرګ شود ګرچې با آدمي بزرګ شود ) د شر او فساد نيتونه د شروع څخه نامناسب او پر پردي پرستي بناوه، او په حقيقت کې د افغان ولس سره د هغوی دښمني له هيڅ چا څخه پټه نه ده لکه قومي، ژبني، تنظيمي، سمتي، تعصبونه ته لمن وهل او د افغان ولس او سني دربدري هم ددوي د عمل محصول ده، او په استخباراتي لحاظ سره خو اشغالګرو په پراخ مټ سره د ډالرو تقسيم په ټول افغانستان کې د خپلو جاسوسانو پواسطه تقسيمول او د تبليغاتو له اړخه خو ئې د اشغالګرو له قوت څخه نه ماتيدونکي او کامياب تصورات د خلکو په ذهنونو کې پيچکاري کول، نتيجه دا سوه چې د مقاومت د قوتونو يو له بل سره ارتباطان قطع سول، او د لوژسيتکي، محاربوي، او صحي امکاناتو نشته والي ددې سبب شو چې د مقاومت هر ګروپ په خپله ساحه کې تقريباً د محاصري په حالت کې راشي او هر ګروپ د خپل ژوند د باقي پاتې کيدو په باره کې پخپله تصميم ونيسي او لاره پيدا کړي، نو هغه وه چې په شمال کې د مقاومت ډير ځائي او منطقوي ګروپونو د مقاومت څخه لاس واخيست او تيت او پرک سول، ځيني هغه ګروپونه چې د افغانستان د جنوب او جنوب غرب څخه په شمال کې ځای پر ځای وه د هغه منطقي دعاداتو او دغه رنګه د مځکې د وضعيت سره به نابلدي سره د ډيرو زياتو مشکلاتو سره مخامخ شول، او يو طرف ته د دښمن د هوائي او مځکني تعروضونه سره مخامخ او بل طرف ته د هر ډول مشکلاتو سره مخامخ او د زياتو ځاني تلفاتو سره له منځه دتلو په حالت کې وه، لويه برخه ئې د دښمن د غداري په واسطه د څو شرطونو په منلو سره تسليم شول او په تأسف

سره زیاته برخه ئې په قلعه جنګي کې له منځه ولاړه، دا دهغو بدبختو غداري او منافقت وو چې دافغانستان په ټول تاریخ کې دهغوې د ټول ولس سره جفاء ،بربریت او تجاوز وهرچاته معلوم دی، چې دا ناولې ډله هر څوک دګلیم جم په نامه پیژنې او د انسانانو پـه وژلو او زورولـو کـې دچور او چپاول پـه لحاظ خو تر هر چا وړاندې ده.

په داخل دافغانستان کې تقریباً مقاومت ختم شوي وو، او څه موده وړاندې حامد کرزی دارزګان پـه ولایت کـې دخپلو امریکائې ملګرو سره یوځای د ډیرو ډالرو پـه شتون ځای ونیوه او بل طرف دعبدالحق درسیدولو دسیسـه وکابل تـه ناکامه سوه او هغه له منځه ولاړه، بل طرف ته دجرمنې پـه بن کې د امریکاپلوه افرادو جرګه چې له وړاندې هر څه تثبیت او معلـوم وه خپلـه پریکـړه دمؤقـت حکومـت پـه راتلـو سـره وجهانیـانو تـه اعـلان او حامـد کـرزی ئـې دمـؤقتې اداري مسـؤول وټاکـه، اودملـک ټـول مهـم اداری تشـکیلات دامریکـاپلوه افـرادو تـرمنځ وویشـل شـوه، دا ټـول هغـه مفسـد ،قطاع الطریقـه ډلـه چـې دکابـل پـه شـمول د ټـول افغانسـتان وړانـونکې او جنایـت کـاران راغونـډ کړل، ددی چاروا کو دقدرت څخه ګټه اخیستل په لاندې ډول سره وه،

۱ - دکابل دشیرپور دملی مځکو څخه بیا دکابل دښار پر شـاوخوا لکـه دبګرامیـو ، بـت خـاک، ده سبز، ده یحی ، دچمتلې دښت بیا تر کاریز میر پورې په پغمان کې بیا تر کمپنې پورې اود ارغندی په شمول د قلعه دښمن بیا تر چوک ارغنـدی پـورې ټـولې دچـاروا کو او زوروا کـو لـه خـوا قبضـه شوې بیا پـر عوامـو هـم ددې زوروا کـو لـه خوا دنمرو پـه ډول خرڅې شوی، او پیسې ئې شخصې جیبونو تـه ولویدې، چې دا پروسـه اوس هـم د پغمـان د کشـکک مخـامخ دقلعـه وزیـر وړانـدې حتـی دغـرو دلمنـې او مـنځ نمـری دی چـې د یـو زروواکې له خوا د(۷۰۰۰) ډالرو په مقابل کې خرڅیږی، او بیا په ټولو ولایتونو کې دولایتې زوروا کو لخوا دملی شتمنې مځکې او ډاګونه قبضه شول او بیا پر عوامو خرڅې شوې، او هم دا عمل په ولسوالیو کې تطبیق سو.

۲ - هغه بې حسابه ډالر چې داشغالګرو پواسطه چاروا کو لـره دمالی او اداري جوړښت لپاره په واک کې ورکړل شول.

۳ - داشـغالګرو د لوژسـتیکې سـامانونو او تیلـو د انتقـال لپاره د ترانسپورت ټیکه داران هم دا دشر او فساد ګوډاګی لـه هرچا نـه وړانـدې داشغالګرو سره د ټیکه داری ملګرې شـول، مخصوصـاًهغه لاری والا وو تـه د اولیت حق ورکـول کیـده چـې دافغانسـتان تـر ټولـو خـائنو او وطـن پلـوونکې دوومشـهورو ښیـرو عسـکونه ئـې دخپلـو مـوټرو دمـخ پـر هینداره لګولې وه.

۴ - دلویو لارو دساتنو په نامه هغه بې بندوباره ولګرد نشه یان، غله او داړه ماران هم ددې چاروا کو لخوا راټول او منظم چې دا لا زیـات دعامـه ترانسـپورت پـه مـخ کـې لـوی خنډ او داذیت سبب وګرځیدل.

۵ - دبـې کیفیتـه دواوو او دارود درملـو واردونکـې هـم پـه مسـتقیم اویـاغیر مسـتقیم ډول سـره هـم دا دقـدرت وړی چاروا کې شول.

۶ - دکانو او معدنیاتو په خپل سر کیندنې هم ددی مفسیدو چاروا کو په قبضه کې وی.

۷ - دوزارتونو په تشکیلاتو کې دمثال پـه ډول یو چاروا کی چې نسبت ئی پخوانی والسوالی او اوسنی یو ولایت تـه دوزارت خارجه پـه (۴۰۰) کسیز تشکیل کی پوره(۲۰۰) نفر دده دولسوالې مربوطه کسان ګمارل شوې وه.

۸ - دشخصې سرمایه دارې په نامـه دملت دشتمنې هغـه مړ ژواندې فابریکې چې دلاهور داوسپنو دبټو څخه په امان کې پاتې شوی وې، داجاری په نامه تر خپل واک لاندې راوستې ، او ترنن ورځې پورې دا پروسه دوام لري.

۹ - دلویـو او وړو لارو دجوړولـو قراردادونـه خـو ددی مفسیدو چـاروا کو اصولې حق او ددې پروسې د بشـپړولو لپـاره چـې انجنیـری او سـاختمانې ځومره خیانتونـه وشول منشی علی احمدئې هم محاسبه نشې کولای، دمثال پـه ډول دیو سړک ترګلیدری او رول وروسته چې دا درنده ماشینری دسرک په جوړولو کې مهم رول لری پـه ډیر کمه اندازه اوکم

وزن او بیا چې دیوسرک دجوړولو اوپخولو لپاره باید (۱۵) یا (۲۰) سانتي متره قیرریزي وي نو هغه ئي نیم په نیم کم قیر



په کمه اندازه اچولي چې نن ئي موږ دژر خرابیدلو شاید یو.

۱۰ - داوبو او کانالیزسیون او دغه رنګه دکلیو دپراختیا تر نامه لاندې غټې او وړې پروژې دچارواکو دخپلوانو ترقبضې لاندې دي.

۱۱ - دګمرکاتو حالت ترهغه اندازې له رشوت او فساد سره لاس او ګریوان دي چې د ننګرهار دوالی دا اعلان چې په یوه میاشت کې د تورخم دګمرک ټول محصول دده په وینا (۱۵۰)ملیونه افغانی سوی، لاکن فقط (۷)ملیون افغانۍ دبانکی حساب له لاری تر محاسبی او کنترول وروسته بانک ته تحویل شویدی، پاتې (۱۴۳)ملیونه افغانۍ د تورخم او جلال آباد ترمنځ لکه دملی فوځ عسکر تښتیدلی دی او ورکې دی. دغه رنګه د ټول مالی وزارت دګمرکاتو او دعوایدو د ادارو حال ته اټکل کړه چې څنګه به وي،

۱۲ - په هیواد کې دچارواکو داداري دښاروالیو عوایدو خو بالکل ورک او د ادارو مصارف او د مامورینو تنخواګاني هم کله چې امریکائي ډالر په بازار کې لیلام شي نو بیا په افغانۍ نوټونو سره ورکول کیږي.

۱۳ - دملی فوځ ، سرحدونو پولیس، (ژاندارم) پولیس، دنظم عامه پولیس، ځای پولیس یا اربکیان، دخاد یا امنیت ملی پولیس او مامورین خو په فساد او اخلاقي مشکلاتو کې له پښو څخه تر سره پورې غرق دي.

۱۴ - رسنې او ابلاغ عامه لکه راډیوګانې، تلویزونونه د استیشنو انډول او اندازه په داخل دافغانستان کې باالخصوص کابل کې دنیمائي جهان د ابلاغ عامه سره برابر دي ، او ددې مظلوم ولس دګمراکولو اودغه رنګه دفحشاء ته د ځواني طبقی دهڅولو لپاره شپه او ورځ لګیا دي.

۱۵ - داشغالګرو نشرات خو فقط دښځو د حقونو په باره کې تر هغې اندازې پورې بې شرمانه دي چې د ډیموکراسي تر چتر لاندې د ښځو دحقوقو په نامه چې څومره تبلیغات کوي داسې معنې لري چې دافغانستان په تاریخ کې دښځو سره دمینځې او برده په ډول سره ګذاره شوي ده، اونن ئي دوې دديموكراسي ځنګله ته چې هلته فقط ځیرونکي لیوان موجود دي ننباسی.

۱۲ - دچارواکو ناروا سلوک خصوصاً دشهوت راني په باره کې حتی ددوه کلنی نجونو څخه بیا تر معمرو ښځو پورې خود هغوې عفت پخپل حال پاتې نه شو، چې دا عمل دجهان په تاریخ کې تر ټولو شرمونکې او له کرکې ډک دي.

نور بیا...



مصاحبه با عالم ومؤلف جید وشهیر :

# شیخ القران والحدیث مولانا عبداللطیف اخندزاده

**سوال اول :**

جناب «شیخ» صاحب امیداست برای خوانندگان محترم مجله څرک درموردتعارف تان اگرلطف نموده توضیح مختصررا ارائه بدارید ؟

**جواب :**

من عبد اللطیف ولد شیخ الحدیث مولنا محمد عظیم ./.ولد الشیخ محمد رسول خان ./.ولد الشیخ روح الله خان ./.ولد الشیخ دوران خان ./.ولد الشیخ عبدالعزیزخان ./.ولد الشیخ محمدشاه عالم خان ./.الهوتکی الحنفی «میباشم ،ومولد من» درحدودسنه ۱۳۶۲ه‍ق المطابق به سنه ۱۳۲۰ه‍ش درقریه هونی سفلی به یک کلو متری ولایت لوگربوده

**سوال دوهم :**

محترم شیخ صاحب درسهای إبتدائی ومتوسطه علوم دینی رادرکجا وازکدام استاذه فراگرفتید وهکذادوره حدیث نبوی ص را درکدام مدرسه ونزدکدام شیخ الحدیث محترم کرده اید -وهم درباره درس وتدریس تان اگرمعلومات بدهید که چند سال این وظیفه مقدس راانجام داده اید؟

**جواب :**

تحصیل ابتدایی بنده ازالف باء وقرآنکریم وعلم نظم إلی بوستان وگلستان وعلم صرف ونحوإلی کافیة ابن حاجب / نزدوالدین شریفین بنده رحمهم الله.بوده ووالده شریفه بنده ازخواجه صاحبان عباسیة بوده واو بربعض علوم إبتدائیة مثل علم نظم وغیره معلومات داشته ، وتحصیل علوم متوسطه راإلی تمام تکمله ازأساتذه برجسته لوگرمثل مولوی صاحب فضل أحمد پادخوابی ، ومولوی صاحب لعل محمد ،إلی بدیع المیزان ومولوی صاحب دادوخیل أزچاردهی کابل .ومولوی صاحب باباازموسهی کابل.رحمهم الله.فرارفتم .وکتب تکمله راازشرح العقائد إلی غفوروصدراوتلویح التوضیح وعلوم ریاضی را نزداین شیوخ وأساتذه قرارذیل فرگرفتم مثل شیخ الحدیث مولوی صاحب محمددین مشهوربه مولوی صاحب چرخ وشیخ الحدیث میر صاحب عبدالستاربادخواب مشهوربه میر صاحب مغل خیل ، ودرمیدان وردگ مثل آخنده صاحب جلریز وزرمت مثل صاحب زاده صاحب سهاک زرمت ، وچارکارشمالی مثل مولوی صاحب چیکل ،رحمهم الله,وکتب دوره خورد وکلان را أزنزدوالدمحترم شیخ الحدیث ملامحمد عظیم رحمه الله فراگرفتم.

**« سندنا فی الحدیث والتفسیر»**

حصلت لی القرائة والسماعة والإجازة من والدی شیخ الحدیث وفخرالمشائخ وسراج المحدثین مولانامحمّدعظیم قدس الله سرّه العزیز, وحصلت له القرائة والسماعة والإجازة عن شیخ الحدیث المجاهد فی ترویج أنوارالحدیث بعد الخمود مولاناعبدالغنی غفرالله له ,(یعنی مولوی صاحب قعه بلند) وهوعن شیخ الأجل البحرالأبجل العلامة قاضی قمرالدینالفنجابی هوشیخ مولانانصیرالدین غورغوشتوی رحمهماالله وهوعن رئیس الفقهاء والمحدثین العلامةأحمدعلی السهارنفوری هوصاحب الحاشیة علی الصّحیح البخاری عن شیخ المشهورفی الآفاق الشاه محمدإسحاق الدهلوی قدس الله سره العزیز ,ویقال أیضًا والله أعلم أن مولاناعبدالغنی رحمه الله قرأوسمع عن مولانانصیرالدین الغورغو شتوی رحمه الله وهوعن مولاناقمرالدین رحمه اللّهُ إلی آخره, هذاسندنا علی الطریقین أقرب الأسانیدإلی شاه محمدإسحاق بحمدالله ومنه ,بخلاف أسنادسائرمعاصیرنا ,وکذا حصلت لی الإجازةعن الشیخ المعروف بمجدالکبیرإمام الأذکیاء والأتقیاء مولاناعبد الحق أکوروی المؤسس ومدیرالجامعة الحقانیّة ,وهوعن شیخ العرب والعجم شیخ الإسلام مولانا السیدحسین المدنی الدیوبندی الحنفی رحمه الله هوعن الثبت الثقةالعارف بالله حضرت العلامة أبومیمون محمودحسن العثمانی الدیوبندی الحنفی النفشبندی قدس الله سرّه العزیز,عن شمس الإسلام باللّه قاسم العلوم والحکم

أبوأحمد محمّد قاسم النانوتوى الحنفى النقشبندى عن إمام أهل المعرفة واليقين أبوسعودرشيدأحمدالجنجووى الحنفى وهويروى كتب الحديث والتفسير قرائة وإجازةً عن شيخ المشائخ فى الحديث العارف با اللّه الشاه عبدالغنى المجددى الدهلوى ثمّ المدنى عن الشيخ أحمد سعيدالمجددى الدهلوى ثمّ المدنى عن شيخ المشائخ رئيس المحدثين أحمدعلى السهارنفورى رحمه اللّه هوعن مولانا محمد إسحاق عن جده أبى أمه العارف بالله الشاه عبدالعزيز الدهلوى رحمه اللّهُ عن إمام الأئمة العارف بااللّه ولى اللّه الدهلوى النقشبندى وأسانيده إلى أصحاب السنن مذكورة فى أوائل صحاح الستة, وبالجملة شيخنا شيخ الحديث ميرصاحب عبد الستار سمعًا وإجازةً وشيخنا شيخ الحديث مولوى عبدالحق صاحب إجازة فقط وشيخنا شيخ الحديث والدنا ملاصاحب محمد عظيم سمعًاوقراءةً وإجازة.

**«وامازمان تدريس بنده»**

بنده تقريًا ۲۵ساله بودم كه ازتحصيل كتب فارغ شدم تقريبًا۵ سال كتاب هاى إبتدائى را درقرية شلك لوگرتدريس كردم وبعدازآن كتب تكمله ودوره خوردراتدريس ميكردم وبعد ازان درزمان هجرت هم كتب تكمله ودوره خورد راتدريس ميكرديم ودرزمان تحريك طلبه افغانستان كتب دوره خورد ورياضى را وچيزى كتب تكمله راتدريس ميكردم والحال چيزى ازكتب دوره خردراتدريس ميكنم، ودرضمن تدريس خود مطالعه كتب حديث وفقه وفتاوى وديگركتب رامثل كتب جرح وتعديل وكتب تراجم راميكردم وميكنم خصوصًابعد ازهجرت ودروطن مهجر به بسيار شوق ورغبت بحمدالله والمنه بسيارأقسام مختلفه كتب هرعلم دينى رابدست آورديم وبه توفيق الله مطالعه ميكرديم وميكنيم،

**سوال سوم :**

محترم شيخ صاحب يك تفرد شماينست كه همراه درس وتدريس تان درميدان تاريخى بسيارتوجه تان بسوى تاليف وتصنيف كتابهاى دينى هم بوده وبسيار كتابها وتاليفات رابه جامعه عرضه كرديد، اگرمهربانى كنيد درباره تاليفات تان توضيحات بدهيد، ضرورت واهميت آنرا واضح سازيد؟

**جواب :**

سابق گفته شد كه همراى تدريس مطالعه كتابهاى دينى راميكرديم خصوصًابعد ازهجرت، دروقتيكه تحريك طلبه درافغانستان ازقندهاربه لوگروميدان وردك رسيد من قصد داشتم كه درين سال دوره حديث يعنى دوره كلان رابراى طلبه شروع كنم، ودرين وقت كبراء تحريك مثل مولوى احسان الله وملامحمدحسن وغيره همراى ديگر شيوخ ازعلماءبرمدرسه آمدند وتقاضاكردند كه مدرسه رابند كنيد وسخن آنراقبول وبران عمل كردم بعدًا فكركردم كه طلبه وبسيارامامهاى مساجد افغان درباره احكام ميت بسيارمحتاج وشائق بودند، درين فرصت براى شان مسائل احكام ميت راازإبتداء حضرإلى فدياوكفارات وقضاءنذوروديون وسائرمتعلقات آن ازكتب معتمده بعبارات سهلة جمع كردم وآنرامسمى«بأحكام ميت» كردم، وبعده ديگر مسائل راكه أهميت آن بمثل أحكام ميت أست جمع كردم وآنرامسمى به «مدرك» كردم، وهمچنان مسائل أوزان شرعيةرا بزبان فارسى جمع كردم وآن رامسمى به «أوزان شرعية» كردم وأيضًامسائل الحج للغيروآنرامسمى به «أحكام الحج للغير» كردم وبعدًا حاصل همين چهارسابق رابزبان فارسى جمع كردم وآنرامسمى به «خزينة المائل» كردم,وأهميت اين ۵ رسائل براى طلبه وإمامهاى مساجد بسيار كارآمد ميباشد مثل أحكام تلقين وغسل وتكفين وقبرودفن ووصية وعدم وصية حقوق الله وحقوق العبادوكفارات وفدياياوديون وخيارات وإثبات آن بآية قرآنى وحديث نبوى وبه همين طورمعرفة كيل وصاع ومثقال ورطل ومن ومد ونصاب زكاة أزنقدين مثلا، وقس على هذا وبعدًا يك رساله كه أزجمله تصنيفات ميرصاحب مغل خيل بود بنابرآنكه به بسيارتداول أيدى خطائى وأغلاط دران عارض شده بودبنابرين بعض علماءآن راموردإعتراض قرار داده بودند بناءبرين آن راتصحيح وبران شرح كردم كه كتاب شيخ المشائخ أزاعتراض نجات يابد ومنافع آن عام شود، وآنرامسمى به «البرهان القدسية» كردم، وطلبه هلمند برايم عرضه نمودندكه درهلمند بسيارعلماءدربين خويش درباره إشاره بالسبابه إختلاف دارند أگر شمادلائل إثبات اين مسئله راجمع كنيد كه طلبه وعلمائكه إختلاف ندارند مطمئن باشندوبران عمل كنند، من آن مسائل وأحاديث نبويه وآثارصحابه وأقوال سلف راجمع كردم وآن رامسمى به «رساله منبه» كردم ودرضمن همين جمع وتاليف مذكورة جمع أحاديث وآثارصحابه وأقوال سلف رادرباره أحوال مكة المكرمة وأحوال سائرمقامات مشرفه وأحوال نسب رسول الله هراهم ميكرديم تاآنكه همه أحوال نسب شريف آنحضرت ومولد آن وزند گي پنجاوسه ساله آن درمكه معظمه وهجرت آنحضرت برمدينه منوره ودرزمان ده سال عمرآنحضرته درمدينه منوره وفتوحات آن وإسلام جزيرة العرب بشمول أحوال غزوةآن وسائرأحوالات بشمول أحوال مكة المكرمه همراى أكثرمتعلقات آنراجمع كردم وأزان پنج جلد تشكيل يافت وآنرامسمى به«تذكرة المكية فى

سیرة النبویة» کردم وأهمیت آن اینست که دران احوال مکة المکرمة همرای مهم ترین متعلقات آن وأحوال رسول الله همرای أکثر متعلقات آن وغزوات رسول الله بمصاح بة صحابه وفتوحات آن بشمول سائر متعلقات آن مثل وفود عرب وبیعة آن وإسلام آن وبعض أحوال جزیرة العرب ووفات آن وبیان معجزات وبرکات همرای مهم متعلقات آن وأحوال صحابه بعدآن وغزوات صحابه وفتوحات آن بطرف غرب إلی حدود قسطنطیة ومصر إلی حدود سائر ممالک غرب وبطرف شرق إلی هرات وبلخ وسائر ولایات خراسان وبعض مقامات ماوراء النهر بعبارات سهلة معتمدة نقل شده الحمدلله والمنة.

ودرمیان این جمع وتالیف، مسائل فقهادرباره حیض ونفاس راهم جمع میکردم وآن رامسمی به کتاب حیض کردم وبر همین منوال مسائل خراج هم زیرقلم جمع وترتیب است وآن تاالحال ناتمام ست وبه همین طور مسائل سودورباوآن رامسمی به رساله «منجیة» کردم، ومن درضمن مطالعات کتب حدیث وتراجم فکر میکردیم که درباره رجال وعلماء أکثر ممالک إسلامی مثل حرمین الشریفین وبغدادوعراق وأصفهان ومصرویمنین وهکذاغیره تصنیفات وتالیفات شده ومن درنظرداشتم که غیرأزصحابه وتابعین درأفغانستان باین قدرعلماء ومجتهدین واصحاب روایة وأصحاب درایة ست که مساوی به عراق وبعض سائرولایات إسلامی میشود، ودررجال وعلماء آن کدام جامعه تصنیف نشده واگر شده باشد مثل کتاب محمد بن عقیل بلخی وأبوإسحاق بن یاسین وغیره، أول آن تخصیص به یک ولایت است مثل کتاب محمدبن عقیل ببلخ وکتاب أبی إسحاق بهرات تخصیص شده وهکذا بناءبرین رجال أفغانستان أزکتب اسماء الرجال وکتب تراجم وکتب تواریخ وطبقات وسائرآن که قابل إعتماد بوده جمع کردم وآنرامسمی به«المفاخر أفغانیة» کردم وآن درضخم ۳جلد، مشتمل بر۲۸۰۰رجال ست بالتقریب که دران یک عده ازصحابه است که برای جهادآمدند مثل بریدة بن الحصیبتوأبو برزة الأسلمیت والحکم بن عمروت. وعاصم بن عمروالتمیمیتوعبد الله بن عمیر الأشجعیتوعلقمة بن النضرتومحمد بن یفدیدویه الهرویتوقریط بن ابی رمثة وقثم بن العباستوعبدالرحمن بن سمرةت وحبیب بن عبداللهتوأبورفاعةالعدوی البصریت وصلة بن أشیم العدویتوأبوقتادة العدویتوصحاربن عباستوشریح بن هانئ بن یزیدوربیع بن زیاد بن الربیع الحارثیت قال البخاری فی تاریخه الکبیر عن عبد الله بن بریدة قال النبیه أیمارجل مات من أصحابه ببلدفهو قائدهم ونورهم یوم القیامة، ثابت ست که هرصحابی که درملک افغان شهیدویاوفات شده باشدوآن قائد ونورافغانست بسوی جنت است إنشاءالله العزیز

وأیضًابسیارتابعی راهم مشتمل ست مثل حضرت نافع مولی عبد الله بن عمرت ازکابل ومکحول کابلی وامام أبی حنیفهت أزکابل، وغیرآن بسیارست وایضًا بسیارأساتذه إمام المحدثین محمدبن إسماعیل البخاری وأساتذه إمام مسلم وأساتذه سائرصحاح ستة راهم مشتمل است وأیضًاسائرمحدثین را مثل أبی داؤد سجستانی (وسجستان عبارت أزفراه ونیمروزوبُست أست)وولدأبی داؤد وابن حبان بستی وسائرمحدثین راهم مشتمل است وأیضًایک صحابی که محمدبن یفدیدویه الهروي که أزهراتست هم درین کتاب بیان شده أست که أزکتب إبن حجر عسقلانی وأسدالغابة کتاب إبن أثیرنقل شده است که إفتخارمردم أفغانستانست الحمد لله والمنه مثلکه حضرت صهیب ازروم ودرحدیث أزنبیهآمده «صهیب سابق الروم» ابن هشام، وسلمان ازفارس وبلال أزحبش ومحمدبن یفدیدویه ازافغان «سبحان الله» وجلد ثالث این کتاب غزوات راکه أززمان صحابةیعنی سنة ۲۳، إلی زمان أولادتیموریعنی إلی سنه"۸۴۰، میباشد محتوی ست، که فتوحات آن ازبادغیس وهرات ونیمروزإلی لاهور کشمیروترکستان چین یعنی کاشغرإلی تمام ماوراءنهروسرحدات ترک ونسابوروتبدل خلافة بنی أمیة إلی عباسیة باکمل طریق بیان شداست.

وأیضًایک کتاب دیگرهم ازاحادیث صحیحة وحسنة ترتیب شده وحدیثکه ضعیف باشد ضعف آن بیان شده، وآنرامسمی به «المنتخب» کردم واین کتاب مشتمل است براحادیث فضائل إخلاص درإیمان وتزکیة نفس وفضائل وضوء واذان ونماز إلی آخرعبادات بدنیة ومالیة وأیضًا مشتمل أست برأحادیث متعلقة منهیات درآن عبادات، وأیضًا الحال یک کتاب دیگر هم زیرقلم ست ازایزدمتعال امید وارم که آن بطریقه اکمل تمام شود.

این بوداهمیت کتب مصنفه بنده اما این اهمیت بطورخصوصیة مسائل هرکدام بود واماأهمیت که آن بطورعموم خویش زیرقانون شرع داخل شود، وآن این ست که برای شما معلومست که درغزوة یمامة صحابة کرام بناءبرین که بسیارحفاظ قرآن کریم شهیدشدند ترسیدند که قرآن عظیم الشان ازبین امة مسلمه ضائع نشودبعدازاجماع صحابه قرآن کریم راازسینه های حفاظ جمع ونوشته کردند که به این وسیله قرآن شریف إلی یوم القیامه محفوظ گردید.

عن علي بن أبي طالب رضي الله عنه أنه قال: أعظم الناس أجرًافي المصاحف أبوبكر، إن أبابكر كان أول من جمع القرآن بين اللوحين. هذا إسناد صحيح، وبرين منوال كتب أحاديث وتفاسير وكتب أحكام بسبب كتابة وتاليفات برلسانهاى مختلف

وبر ترتيبها وتبويبهاى متنوعه إين مقدس دين درهر طرف دنياوبه هرملک وبه هر قوم وبه هرديار وبه هرخاندان وبه هرشخصيتها مردانه وزنانه رسيدوالى يوم القيامه إنشاءالله العزيز معمول ومحفوظ ميباشد,

**سوال چهارم –**

جناب آخندزاده صاحب! ، همراه مهارت وفهم برعلوم ديني اگريک عالم عبور ومرور به وسايل عصرى نيز داشته باشد ، اديدگاه شريعت مطهر درين رابطه چه است ؟

**جواب:**

براى عالم وغيرعالم تعليم وسائل عصرى مثل كمپيوتر وپرينتر وسائرآن وغيرعصرى مثل وسائل قديمة مثل أسباب نجارى ودهقانى ومعمارى وساعتسازى وموترواني غيره,أگرنيت وقصدآن حصول دنياباشد ودران ضرر دردين وإيمان آن ودين وإيمان جامعه نباشد.جائزست مثلكه عوام وبعض أهل علم رامبينيم يكى موتروانست ويكى بائسكل وانست وقس على هذا,واُگرقصدونيت آن ضرربدين باشد بعدآن مراتب داردد ربعض مرتبة كافرميشود العياذبالله ودربعض مراتب فاسق ميشود,عامست كه بدين ضرربرسدويانه لكن معصيت آن بحسب نيت آنست,واُگرنيت آن حصول دنيابودلكن كسب آن ضرربه دين بود آنهم غيرجائزست مثل أسباب محاربوى كه أنراتيارميكندوبر كفارآن راميفروشدوأمثال آن,أزين سخن فهميده شدكه جوازوعدم جواز تعليم تخصيص بروسائل عصرى وياغيرعصرى ندارد,لكن مقاصد شرعية تعلق برضرروغيرضررونيت وقصدآن دارد,

اگرتعليم وكسب وإستعمال آن درترويج وتقويت دين وإسلام وترويج دين مستعمل ميكند وآن ألبته مأجورومثاب ميباشد,

" وأماتعليم زبان غيرمسلم" أهميت تعليم آن أزتقرير سابق معلوم ميشود ودرحديث نبوى ﷺآمده مضمونش ,كه رسول اللهﷺيک صحابى راأمركردكه زبان يهودونصارى رابأندازه تعليم كن كه بردينت ضررنشود,

## لس عادتونه مو ګردې له منځه وړي

ډاکتران دګردو ناروغۍ ته د(غلی ناروغی) نوم ورکوي لاندې لس عادتونه مو ګردې له منځه وړي :

۱ -پوره اوبه نه څښل :

دګردو مهمه دنده دويني تصفيه ، له زهري موادو څخه دبدن ژغورل ، که چيرې د ورځې په اوږدو کې پوره اوبه ونه څښو ، ددې شونتيا شته ،چې زهري مواد په ګرده کې راټول او زموږ بدن له ستونزو سره مخ کړي .

۲ -په خوړو کې د زياتې مالګې کارول :

زموږ بدن مالګې ته اړتيا لري ،چې په ښه بڼه خپلې دندې ترسره کړي ، خو ځينې خلک په خوړو کې ډېره مالګه کاروي ،چې دفشار د لوړيدو لامل ګرځي او پر ګردو فشار ډيروي ، دتجربې له مخې دمالګې دغوره کارونې لپاره بايد هر انسان دورځې له ۵ ګرامو څخه ډېره مالګه ونه کاروي .

۳ -دطبيعي کارونو ژر نه ترسره کول :

ډير خلک ،چې کله تشناب / حمام ته اړتيا پيدا کړي سمدلاسه دا کار نه کوي دوی يا بوخت وي يا له عامه تشنابونو څخه ځان ساتي دا ډول يو عادت دميتازو / بولو فشار ډيروي ،چې په پای کې ګردې اغيزمنوي ، دګردو دتيږو او دميتازو دبهيدو لامل ګرځي ، که غواړئ ،چې سالمې ګردې ولرئ بايد داړتيا پرمهال سمدلاسه تشناب ته ولاړ شئ .

۴ -د خوړو موادو زياته کارونه :

علمي څيړنې په ګوته کوي کوم وګړي / کسان ،چې د ورځې دوه ځل يا ډېر خواړه مواد څښني د دوی په ميتازو / بولو کې پروتين راڅرګنديږي او په ميتازو کې دپروتين راڅرګنديدل دا مانا ورکوي ،چې ددی کس ګردې لکه څرنګه ،چې په کار ده هسې کار نه کوي .

۵ -دويټامينو کمښت :

پاک خواړه ، له سبزيو ، تازه ميوو څخه جوړ خوړنيز پروګرام کولای شي ،چې دګردو روغتيا تضمين کړي ، د ويټامين B6 کمښت ددی لامل ګرځي ،چې په ګردو کې مو تيږې راپيدا او يا له کاره ولويږي . نږدې ۷۰-۸۰% امريکايان پوره B6 نه اخلي ځکه ، خو دګردو له ناروغۍ سره لاس او ګريوان دي.

۶ -دحيواني پروتين ډېر کارول :

دپروتين ډېر کارول په ځانګړې توګه سره غوښه ، پر ګردو فشار راوړي ، دخوړو په پروګرام کې د ډېرې سرې غوښې کارول ګردې اړ باسي ،چې له اړتيا زيات کار وکړي ، خو دوخت په تيريدو يې په لوی لاس له منځه وړو .

۷ -پوره خوب نه کول :

موږ ټولو دا خبره اوريدلې ده ،چې شپې له اړخه پوره او ښه خوب وکړو ، پرلپسې بې خوبي دګردو دناروغۍ سربېره دنورو هغو لامل ګرځي ، دشپې له اړخه ګردې دهغو برخو د بيا رغونې عمليه پيلوي ،چې دورځې پرمهال زيانمنې شوې وي ، که غواړئ،چې ګردې مو دشپې له اړخه ځان راټول او بيرته منسجم کړي بايد پوره او ښه خوب وکړئ. په دې برخه کې دهر لمانځه لپاره تازه اودس ، ژر ژر اوبه څښل او تشناب ته تګ هم بې ګټې نه دي

۸ -پر قهوه ځان روږدې کول :

دمالګې په څېر کوکاين هم دويني فشار لوړوي او پر ګردو اضافه فشار راځي ، دوخت په تيريدو دقهوې زيات کارول ددې لامل ګرځي ،چې ګردو ته زيان ورسوي .

۹ -د درمل ناسم کارول :

يو شمېر وګړي / خلک د ډېر کوچني درد لپاره هم درمل کاروي ، که سړی يو څه هڅه وکړي کېدای شي د درد دمخنيوي لپاره له نورو طبيعي لارو چارو هم ګټه پورته کړي ، دمسکن درملو زياته کارونه ددی لامل ګرځي ،چې ګردې او ځيګر له کاره وغورځوي .

۱۰ -دالکولو ډېره کارونه :

په ريښتيني مانا الکول قانوني زهر دي ،چې پر ګردو او ځيګر مرګوني فشار پرېباسي. د ښې روغتيا او دګردو له ستونزو څخه دژغورنې په موخه بايد تازه خواړه وخوړل شي ، که تر خپل وسه هڅه وکړو او پورتني لس عادتونه له منځه يوسو او ګردې مو دپرلپسې فشار لاندې نه وي نو بدن مو کولای شي ،چې خپله دنده په ښه توګه ترسره کړي .

# دیوه درویش د آخرت سفر

ليکونکی: حامد مير

ژباړن قاري محمد

دا يوه نه هيريدونکې جنازه وه دا ديوه داسې عالم جنازه وه چاچې له خپلې مړينې څخه وروسته هم د خپلې جنازې په مټ زماغوندې نيمګړي انسان په پوهه کې ډير ښت راوست، په دې جنازه کې د ګډون له امله ماته د ريښتينې واکمنۍ ديوه څر ک ليدو موقع په لاس راغله، ماته څر ګنده شوه چې اصلي واکمن هغه څوک نه وي چې دقدرت په ګديوناست وي او احکام صادروي، ريښتيني واکمن هغه وي چې د خلکو په زړونو واکمني کوي او ما د همداسې يوه بې بيلګې انسان په جنازه کې د ګډون نيک بختي ترلاسه کړه چې د اقتدار له ګديو او مقامونو لرې وو خو هغه د خلکو په زړونو واکمني کوله، زما ګناګارو ستر ګو د مختلفو سياسي رهبرانو په جنازو کې د انسانانو لوی لوی هجومونه ليدلي خو مونږ او تاسوبه ديوه داسې درويش په جنازه کې دومره انسانان نه وي ليدلي چې د مر ګ خبر يې نه د کوم تلويزوني چينل د خپرونو بيړني خبر شو او نه هم د کومې مشهورې غټې ورزپاڼې د اول مخ ښکلا شو؛ ماته هم دا خبر ديوه ملګري د ټيلفوني ليک له لارې را ورسيده، سبا د ورځې چې د جنازې ځای ته ورنږدې شوم نو په خپلو ستر ګو مې باور نه کيده، هغه د انسانانو يو بحر وو چې د ژړا او انګولا پر ځای د غم او انديښنې يو انځور ورنه جوړ شوی وو، د انسانانو د بحر په ليدو سره مې باور شو چې د ميډيا د ځواک دعوی له غولولوپر ته بل هيڅ شی نده، له زوررو خلکو څخه ويريدلې ميډيا د عمران خان او ريحام خان د طلاق له موضوع څخه رنګينه ميوه جوړه او خر څوله يې او په بلدياتي انتخاباتو کې يې په شويو وژنو او چور مرۍ څيرونکې سورې وهلې، دغې ميډيا د خپلې زمانې د يوه جيد ديني عالم، يوه قلندر او د قوم ديوه محسن د مر ګ خبر ته د څو سانيو لپاره هم ارزښت ورنه که او نه يې د جنازې وخت وښوده، خو په جنازه کې د انسانانو د بحر موجوديت په حقيقت کې د الله تعالی د مخلوق له لورې د ميډيا له ځواک څخه د انکار اعلان وو؛ اصلي ځواک له هغو خلکو سره نده چې په ميډيا ښکاري، اصلي ځواک له هغو خلکوسره ده چې د ځواک له ترلاسه کولو څخه بې پروادې خو د خلکو په زړونو واکمني کوي، د داسې يوه عظيم انسان نوم مولانا ډاکټر شيرعلي شاه وو چې د ۲۰۱۵ ميلادي کال د اکتوبر د مياشتې په ۲۹ نيټه يې د جمعې له لمانځه وروسته له نړۍ څخه کډه وکړه؛ ډاکټر صاحب ټول ژوند د علم رڼا خوره کړې او د هغه جنازې هم دغه رڼا خوروله، هغه ټول ژوند ديوه عام انسان په توګه تير که خو په جنازه کې يې څر ګنده شوه چې هغه د خپل وخت ډير لوی واکمن وو چې په لکونو او مليونونو زړونو باندې يې واکمني کوله، خلکو له خپل دغه واکمن سره ډيره بې پرې مينه کوله، د مولانا ډاکټر شيرعلي شاه صاحب په جنازه کې هيڅ يوه خصوصي کس ګډون نه وو کړی، هيڅ يو وزير يا مشاور تر ستر ګو نه شو خو عام خلک له لرې لرې څخه راغلي وو، د کراچۍ او کوئټې سربيره د افغانستان له لرو پر توسيمونه لوی شمير خلک په جنازه کې د ګډون لپاره د اکتوبر د ۳۰ ورځې ۱۱ بجې اکوړه خټک ته را رسيدلي وو، ډيری خلک د مرحوم د ښښې سره سره د خپل ځان د ښښلو په نيت راغلي وو، د خلکو ګمان وو چې مولانا ډاکټر شيرعلي شاه صاحب يواځې يو ديني عالم نه بلکه ولي الله وو او د ولي الله په جنازه کې د ګډون له امله به د دوی ګناوې وښښلی شي.

مشر صحافي ښاغلی رحيم الله يوسف زی په دې جنازه کې د ګډون لپاره له پيښوره راوتلی وو چې ګوري په جي ټي روډ د خلکو او د موټرو ډير لوی بير وبار ده، په ډيره سختۍ سره چې اکوړه خټک ته نږدې شو

نو د مولانا ډاکټر شیرعلي شاه صاحب لپاره یې د خلکوعقیدت چې او لیده حیران شو، نوموړی وایي د جنازې په لور روان یوه کس نه مې وپوښتل چې له کوم ځای نه راغلی یې؟ هغه او ویل چې له افغانستان نه راغلی یم، ورنه ومې پوښتل آیا ته د ډاکټر صاحب شاګرد یې؟ هغه جواب په نه سره راکه، ورنه ومې پوښتل آیا په خپل ژوند کې دې کوم ځل لیده کاته ورسره شوي؟ د هغه جواب بیا نه وو، پوښتنه مې ورنه وکړه ته له دومره لرې نه ولې راغلی یې؟ هغه افغاني جواب راکه: ډاکټر صاحب یو ولي الله وو دهغه په جنازه کې په ګډون سره ثواب ترلاسه کول غواړم، رحیم الله یوسف زی وایي چې ما په خپل ژوند کې ډیرې لویې لویې جنازې لیدلي خو د مولانا ډاکټر شیرعلي شاه صاحب جنازه له ټولو لویه وه.

مولانا سمیع الحق صاحب له دار العلوم حقانیه نه په کم واټن کې د جنازې میدان ته ځان رساوه خو دا څوسوه ګزه مزل ور ته ډیر ستونزمن شوی وو هغه چې د جنازې میدان ته را ورسیده شاوخوایې جنازې ته په راغلوخلکو نظر وزغلاوه بې اختیاره یې و ویل داجنازه د جنرال ضیاء الحق له جنازې څخه لویه ده، د مولانا ډاکټر شیرعلي شاه صاحب د جنازې د لویې په بیانولو مولانا سمیع الحق صاحب کومه دنیاوي ګټه نشي ترلاسه کولای بلکې د دې ویره ده چې ځینې خلک به خوابدي شي خو سره له دې مولانا سمیع الحق د لسګونو علماؤ په وړاندې چې څه و ویل هغه د هغه د حق وینا او له خدای ج څخه ویره وه، د یوه اصلي واکمن د دبدبې اعتراف وو.

مولانا ډاکټر شیر علي شاه صاحب د دار العلوم حقانیه اکوړه خټک شیخ الحدیث وو، هغه له مولانا عبدالحق صاحب سره یوځای په دې مدرسه کې تدریس پیل کړی وو اوله دې وروسته بیا د لوړو زده کړو لپاره د مدینې منورې پوهنتون ته لاړه، د مدینې منورې پوهنتون کې یې د حسن بصري رح په تفسیري روایاتو کې دکتورا ( تخصص ) وکه، دا دکتورا د هغه لپاره ستونزمنه نه وه ځکه چې هغه په پښتو او اردو سربیره په عربي، فارسي او انګلیسي ژبوهم پوهیده لیکن هغه په دې دکتورا له اړتیا زیات کلونه تیر کړل د دې لامل یوازې دا وو چې هغه د مدینې منورې په مینه کې بوخت وو او په مدینه منوره کې یې د خپلې استوګنې د مودې د اوږدولوپه موخه څو ځله قصداً ځان په امتحان کې ناکامه کاوه.

له مدینې منورې نه بیر ته له راتګ سره سم یې د کراچۍ او میران شاه په مدرسو کې له څه مودې تدریس وروسته بیر ته دار العلوم حقانیه اکوړه خټک ته راغی او تر مرګه بیا له دغې ادارې سره پیلی پاتې شو دهغه تر ټولو لوی ښه والی دا وو چې په سیرت او کردار کې یو حقیقي ښو ونکی وو، د مولاناسمیع الحق له سیاست نه به لرې اوسیده خو د دار العلوم حقانیه په علمي او تدریسي سر ګرمیو کې به بیا وړاندې وړاندې وو، له مړینې څوګړۍ وړاندې یې خپلې کورنۍ ته دیوه لیک سربیره مولانا سمیع الحق ته هم یو لیک لیکلی وو او دهغه د مدرسې لپاره یې نیکې هیلې ځرګندې کړې وې.

له مولانا ډاکټر شیرعلي شاه صاحب سره زما شخصي اړیکې ډیرې مخکینۍ وې، څو کاله وړاندې په راولاکوټ سیمه کې په یوه کشمیر کانفرنس کې له هغه سره د خبرو کولو موقع په لاس راغله نوزه د هغه د علمیت منونکی شوم هغه به د مولانا شبیر احمدعثماني ډیر مثالونه ور کول، ډاکټر صاحب به ویل چې زه د پاکستان د آزادۍ پرمهال د ۱۷ کلونو وم او ما به د پاکستان په حق کې نارې وهلې، پاکستان دهغه د ایمان برخه وه او هغه به د پاکستان پر خلاف د جوړوشویو کورنیو او بهرنیو دسیسو پر وړاندې فولادي دیوال شو



هغه صوفي هم وو او مجاهدهم وو، په ډیرو ستونزمنوحالاتو کې یې هم له رښتیا ویلو ډډه نه کوله، په آخري ورزو کې دهغه بدن ناروغه وو خو فکر یې له ځوان زلمي څخه زیات صحتمند وو؛ د ډاکټر صاحب مرګ هغه ته یو نوی ژوند ور که هغه به زمونږ په یادونو کې تل ژوندی وي.

# دظلم او جبر په خلاف داسلامي امارت هوډمن دریځ !!

(حسن خیل)

لکه لمر ښکاره او روښانه ده چې دمرحوم عالیقدر امیر المومنین ( ملا محمد عمر مجاهد ) رحمه الله تر دلسوزانه قیادت لاندې دطالبانو اسلامي خوځښت او بیا اسلامي امارت هغه مهال طلوع او خپلې نجات ښښونکې وزرې په ګران هیواد افغانستان وغوړولې ، چې هلته نه دچا سر محفوظ و او نه مال، هر زورواکي پخپله سیمه کې دخپلې خوښې سلطه او واکمني درلوده ، قانون او مقررات دهغو خپل مزاج او ځاني پریکړې وې . هیواد دعملي تجزیې په لور روان و، خارجیانو او ګاونډیانو دمسلطو ظالمانو یاحمایه کوله او یایې هم ننداره ، په هغو سختو او مایوسو شرایطو کې ددیني مدارسو بااحساسه شاګلمیانو دیوشمیر مخلصو جهادي قومندانانو په ملګرتیا ځکه افغانستان ته نجات ورکړ او یو مثالي عدل او انصاف یې قایم کړ چې نعره او هدف یې دظالمانو او جابرانو له چنګال څخه دمظلوم ولس خلاصون او هرجابر او ظالم ته مناسبه سزا ورکول وو

افغان متدین ولس چې کله دطالبانو قول له عمل سره برابر ولید او داسلامي شریعت وړانګې یې خپرې ولیدې ، نو په سر او مال یې له هغوئ نه دفاع او حمایه وکړه ، همدغه ولسي طاقت او حمایت وو ، چې دفساد او پاټک سالارۍ جرړې یې په ډیر کم وخت کې وچې او نابودې کړې او دوحشت او بربریت قانون ته یې دپای ټکی کیښوده

هغو چې له ظلم او ناروا وو لاس واخیست او له خپلو ناسمو کړنو څخه الله پاک ته تایب شول ، اسلامي امارت ورته دمحبت ، عفوې او شفقت غیږه پرانیسته او هغو چې خپلو ناولو کړنو او دولس په خلاف ظالمانه اعمالو ته دوام ورکاوه، اسلامي امارت هغوئ تر ورستیو ځالو او سوړو پورې تعقیب کړل او دافغانستان ۹۵ فیصده ځمکه یې ددوئ له شر او فساد څخه وژغورله .

کله چې دامریکا په مشرۍ نړیوال استعمار په افغانستان یرغل او هجوم راوړ ، مومن او وفادار ولس دطاغوت هرډول جبر او ستم ته سیني سپر اوډال کړې ، خو اسلامي امارت یې یواځې او تنها پرې نښود ، بلکې اوږه پر اوږه ورسره و درید ،تردې چې خپل سرونه او مالونه یې ورنه قربان اونذرانه کړل .

دافغان ولس ددومره میني او محبت علت اودلیل دانه وو چې داسلامي امارت په ملاتړ او حمایې کې دوی مادي ، سیاسي او دنیاوي ، ګټې او امتیازات لیدل ، بلکې خاصه وجه او علت یې داوه اودی چې ولس داسلامي امارت په قیادت او لښکر کې عدل او انصاف لیده اوویني یې او داحقیقت ورته لکه لمر روښانه وو چې دغه قیادت په اسلامي اوملي ارزښتونو هیڅکله سودا بازي او نامشروعه معامله نکوي .

اسلامي امارت هم په ډیرو سختو او ضیقو شرایطو چې کله دولس په خلاف دظلم او بربریت څرک حس کړی او لاس یې پرې بر شوی ځان یې هلته رسولی ، خپل ټول امکانات یې په کار اچولی ترڅو خپل ولس ته نجات ورکړی او دظالمانو له پنجو یې وژغوري .

چې ښکاره مثال او جوت ثبوت یې دزابل ولایت په مربوطاتو کې دیوشمیر هغو بې بندوبارو او ظالمو باندونو په خلاف چټک او قاطع عملیات وو چې له څه مودې راهیسې یې دعام افغان ولس په خلاف پرته له کوم شرعي موجب او وجوهاتو څخه ظالمانه اوله وحشت څخه ډک چلند ترسره کاوه او ټول دیني ، اخلاقي اوانساني ارزښتونه یې تر پښو لاندې کړي وو

په زابل کې دظلم او جبر په خلاف داسلامي امارت ورستي اقدام ثابته کړه چې اسلامي امارت دنړیوال طاغوت او هم یې دګوډاګیانو سره په مقابلې سربیره ، هیڅکله هغو خودغرضو او خودخواهو عناصرو ته اجازه نه ورکوي چې دجهاد له پاک نامه څخه بده استفاده کوي ، په خپلو ناولو اعمالو سره دمجاهدنوم بدناموي اودافغان ولس په مقابل کې له جبر اوزیاتي څخه کار اخلي .

دزابل ورستیو تصفیوي عملیاتو په ډاګه کړه چې اسلامي امارت خواخوږی قیادت له افغان مظلوم ولس سره څومره محبت او الفت لري ، له یوې خوا داشغال او یرغل ښکارګرو [illegible] تیري په مقابل مقدسه مبارزه سرته رسوي اودولس له ابرو ، عزت او نوامیسو دفاع کوي ، له بل لوري دخپل صف تصفي اوانسجام ته دعمل په میدان کې څومره ځیر او متوجه دی ، ترڅو هغه عناصر چې دجهاد ترعنوان لاندې بدعزایم او دولس په ضد له کرکې اونفرت نه ډک چلندلري ، هڅې یې په نطفه کې شنډې او خنثی وګرځوي .

# برخورد ورفتار

# حضرت محمد صلی الله علیه وسلم

# با اسیران چگونه بود؟

نویسنده : دکتور راغب الحنفی السرجانی

مترجم : محمد حنیف حسین زایی

محمد بزرگ، جهان را به عدالت، آزادی، تسامح و فضیلتی که از دست داده بود، بازگرداند

پس از آن که صلیبی ها وارد شهر قدس شدند و کنترل شهر را به دست آوردند، متوجه شدند که تعدادی از اهالی شهر در اثر ترس از صلیبیان خود را به داخل مسجد قبه الصخره پنهان کرده اند. آن گاه صلیبی ها به داخل مسجد هجوم برده و همگی آنان، اعم از زنان و پیرمردان و کودکان را قتل عام کردند و مسجد تا زانو از خون پر بود[۱].

این گونه بود وضعیت صلیبیان! اما وضعیت اسلام به گونه ای دیگر است!

اسلام، دینی واقعی است که با رویدادها و حوادث برخورد دارد و در روند تشریعی خود با خیال پردازی یا الگوهایی غیر قابل تحقق از بین نمی رود. بنابراین، طبیعی است با قضیه ی اسیران به منزله ی یک واقعیت زندگی برخورد نماید نه این که از آن تجاهل نماید یا برایش راه حلی عاطفی و بدون واقعی طرح نماید. از این رو، مسلمانان در برخی مواضع، خط و مشی مشخص می نماید تا در برابر اسیران آن را اتخاذ نمایند و نزدیکترین اوضاع در ذهن این است که دشمن مردانی از مسلمانان را اسیر کرده است و باید به مانند آنان مقابله شود. اما رسول خدا (ص) در چنین شرایطی چگونه با اسیران برخورد نموده است؟

اصل و قاعده ی عمومی ای که رسول خدا (ص) آن را در نخستین غزوه ای که مسلمانان افرادی را اسیر کردند، وضع نموده و تأکید دارد که: «با اسیران به خوبی رفتار کنید[۲]».

اما مهم این است که این معامله ی نیکویی که رسول خدا (ص) در مورد اسیران به آن دستور داده است، فقط قوانین محضی نبودند که در واقعیت زندگی، عملی و اجرا نگردند؛ بلکه این قوانین در مجموعه ای از جلوه های زندگی، شکل عملی به خود گرفته که بیانگر دل هایی است که مملو از رحمت و رأفت اند و از احساساتی پرده برمی دارند که سرشار از عشق و عاطفه اند و اینک به خواست الله در مورد این مظاهر و جلوه های رحمت و شفقت نسبت به اسیران با تفصیل بحث می شود.

مطلب اول: غذای اسیران

خداوند متعال می فرماید: (وَيُطْعِمُونَ الطَّعَامَ عَلَىٰ حُبِّهِ مِسْكِينًا وَيَتِيمًا وَأَسِيرًا)[۴] : [و خوراک می دادند به بینوا و یتیم و اسیر، به خاطر دوست داشت خدا].

در این آیه، خداوند متعال بندگان مؤمنش را به خوشرفتاری و احسان در برابر اسیران و غذا دادن به آنان تشویق و ترغیب می کند و با این کار، آنان را به نعمت های آخرت وعده می دهد.

ابن عباس (رض) می گوید: رسول خدا (ص) در روز غزوه ی بدر به اصحابش دستور داد تا اسیران را مورد اکرام و نوازش قرار دهند و صحابه آنان را بر غذا

خوردن از خود مقدم می کردند. سعید بن جبیر، عطا، حسن و قتاده نیز این گونه گفته اند].[۵]

ابن جریج[۶] [در ارتباط با این آیه می گوید: در زمان رسول خدا (ص) همه ی اسیران مشرک بودند، ابوعبید می گوید: من می بینم که خداوند ستوده است کسی را که با اسیر مشرک به نیکی برخورد کند].[۷]

هرگز صحابه باقی مانده ی غذای خود را به اسیران نمی دادند؛ بلکه بنابر توصیه ی رسول الله (ص) غذای پس مانده و بهتر آنان را جمع می کردند و خودشان آن را می خوردند. ابوعزیز، برادر مصعب بن عمیر (رض) از آنچه برایش پیش آمده بود، می گوید: من در میان گروهی از انصار بودم آنگاه که مرا از بدر آوردند. لذا هرگاه آنان ناهار یا شام می آوردند، بنابر توصیه ی رسول خدا (ص) که نسبت به ما کرده بود، ابتدا آن را به من تقدیم می کردند و خودشان خرما می خوردند و هرگاه به دست کسی تکه نانی می افتاد، آن را به من تقدیم می کرد و من شرم می کردم و آن را رد می کردم و او نیز دوباره آن را به سوی من برمی گرداند و آن را دست نمی زد!

ابن هشام می گوید: این ابوعزیز پس از نضر بن حارث پرچمدار لشکر مشرکان بود].[۸] [یعنی وی فردی عادی نبود؛ بلکه یکی از سرسخترین دشمنان مسلمانان بود، زیرا جز افراد دلیر و بی باک و سران قوم، کسی نمی تواند پرچم را حمل کند، این بار هم در قاعده ی وضع شده ی نبوی در تعامل با اسیران تغییری روی نداد و تحت هیچ شرایطی نباید از این اصول تخطی شود.

مطلب دوم: پوشاک اسیران

مسلمانان تنها به این اکتفا نکردند که فقط به اسیران غذا بدهند، بلکه به آنان لباس و پوشاک نیز تقدیم می کردند و این امر در احادیث صحیح وارد شده است. چنان که امام بخاری بابی به نام «باب الکسوه للاساری» نام گذاری نموده است و در آن از جابر بن عبدالله (رض) روایت شده است: «وقتی در غزوه ی بدر اسیران را می آوردند و عباس را در حالی آوردند که لباسی نداشت. رسول خدا (ص) برایش پیراهنی جستجو کرد و پیراهن عبدالله بن ابی برایش مناسب بود، لذا رسول خدا (ص) آن را به وی پوشاند]«.[۹]

و نیز روایت شده است که رسول خدا (ص) دستور داد تا اسیران هوازن را لباس بپوشانند، چنانکه به فردی دستور داد تا از مکه برای اسیران لباس معقّد[۱۰] [خریداری نماید. لذا هر کسی که آزاد می شد، لباس بر تن داشت].[۱۱]

مطلب سوم: فراهم نمودن آسایشگاه مناسب برای اسیران

پس از آن که وضعیت اسیران روشن گردید، مسلمانان آنان را در دو جا نگهداری می کردند؛ یا در مسجد که محترم ترین مکان نزد مسلمانان بود، یا در خانه های صحابه.

هدف از نگهداری آنان در مسجد این بود تا اخلاق و عبادت مسلمانان را ببینند و شاید از آنان متأثر شوند و ایمان در دلهایشان نفوذ کند و دقیقاً این امر اتفاق افتاد، آن گونه که در داستان ثمامه بن اثال آمده است].[۱۲]

اما این امر که برخی را در منازل نگهداری می کردند، اکرام بزرگی از طرف مسلمانان نسبت به اسیران بود. حسن بصری می گوید: چون اسیری را به محضر رسول خدا (ص) می آوردند، آن را به یکی از صحابه می سپردند و به او این گونه توصیه می کرد: «با او به نیکی برخورد کن.» و چون دو یا سه روز اسیر در نزد او می ماند، او را تحت تأثیر قرار می داد].[۱۳]

مطلب چهارم: آزار نرساندن به اسیران

فطرت پاک و سالم، شکنجه و آزار رساندن به بشریت را نمی پذیرد؛ بلکه فطرت های پاک به شکنجه ی حیوانات و پرندگان نیز راضی نمی شوند. رسول خدا (ص)، صحابه ی بزرگوار را نیز به اساس این رحمت و شفقت تربیت کرده بود. جریر بن عبدالله (رض) می گوید: رسول خدا (ص) فرمود: «هر کس رحم نکند، مورد رحمت قرار نخواهد گرفت]«.[۱۴]

بنابراین، صحابه نمونه ی عملی رحمت و شفقت برای همه ی بشریت اعم از مسلمان و غیر مسلمان بودند و پیشتر یادآور شدیم که رسول خدا (ص) عمل

آنان را انکار نمود، آن گاه که دو نوجوان قریشی را که در غزوه ی بدر اسیر کرده مورد ضرب و شکنجه قرار داده بودند، چنان که فرمود: «اگر سخن راست را به شما بگویند، آنان را می زنید و اگر به شما دروغ بگویند، آنان را رها می کنید. راست می گویند، به خدا سوگند که این ها از لشکر قریش هستند»[.۱۵]

هر چند این دو نوجوان که مورد ضرب و شکنجه قرار گرفته بودند، از لشکر متجاوز بوده و آن لشکر را با آب دادن کمک می کردند.

حتی شریعت اسلام از این هم پا را فراتر نهاده و تعذیب و شکنجه ی اسیر را به خاطر کسب معلومات از دشمن نیز نهی کرده است. از امام مالک پرسیدند: آیا اگر امید بود که اسیر، لشکر را به اسرار دشمن اطلاع دهد، مورد شکنجه قرار داده می شود؟ فرمود: من چنین چیزی نشنیده ام[.۱۶]

مطلب پنجم: نرمی و ملایمت با اسیران

یکی از اخلاقیات اسلام این است که باید با اسیر با نرمی و ملاطفت برخورد شود تا احساس آرامش و اطمینان بکند و اخلاق رسول خدا (ص) این گونه بود که پرسش های اسیران را جواب می داد و از سؤال و پرسش های آنان خسته و ملول نمی شد؛ که این امر بیانگر سعه ی صدر و عمق رحمت و عطوفتی است که باید همه ی انسان ها از آن بهره مند شوند حتی اسرا و دشمنان.

عمران بن حصین می گوید: قبیله ی ثقیف با بنی عقیل هم پیمان بودند، آن ها دو نفر از یاران رسول الله (ص) را اسیر کردند و اصحاب پیامبر (ص) نیز یک نفر از قبیله ی بنی عقیل به اسارت بردند و همراه وی عضباء (شتر رسول خدا (ص)) را به غنیمت گرفتند. آن مرد در بند بود که رسول خدا (ص) از کنارش می گذشت. وی صدا زد: ای محمد، ای محمد. رسول خدا (ص) نزدش آمد و فرمود: «چه می خواهی؟» آن مرد گفت: چرا مرا اسیر کرده ای؟ و چرا شترم را که از همه ی حجاج سبقت می گیرد، به غنیمت گرفته ای؟ رسول خدا (ص) فرمود: «تو را به خاطر جنایتی که هم پیمانانت، قبیله ی ثقیف مرتکب شده اند، به اسارت گرفته ام.» سپس برگشت تا برود. دوباره آن مرد او را صدا زد و گفت: ای محمد، ای محمد. از آن جایی که رسول خدا (ص) مردی مهربان و رقیق القلب بود، برگشت و فرمود: «چه می خواهی؟» گفت: من مسلمان شدم. فرمود: «اگر تو به هنگامی که در اختیار خودت بودی، این حرف را می زدی به طور کامل رستگار می شدی.» سپس برگشت تا برود. بار دیگر آن مرد صدا زد و گفت: ای محمد، ای محمد. رسول خدا (ص) برگشت و فرمود: «چه می خواهی؟» گفت: من گرسنه و تشنه ام. به من آب و غذا بدهید. فرمود: «این نیاز توست.» یعنی به او آب و غذا بدهید.

بنابراین، این تردد و چند مرتبه برگشتن نزد مردی که او را صدا می زند، کار رهبر نخست و فرمانده اول دولت اسلامی است که فقط او را با نامش می خواند و این امر بیانگر اوج رحمت و شفقتی است که رسول خدا (ص) آن را در قلبش برای تمام بشریت حمل می کرد.

رسول خدا (ص) اسیری را به ابوهیثم تیهان سپرد و به او توصیه کرد که با وی خوشرفتاری کند. ابوهیثم او را به خانه اش برد و سپس به او گفت: رسول خدا (ص) در مورد تو به من به خوبی سفارش کرده است، پس تو به نام الله آزادی و روایت شده است که به او گفت: تو به نام الله آزاد هستی و از مال من نیز سهمی داری[.۱۷]

مطلب ششم: احترام به احساسات و عواطف بشری

اسلام، ارزش انسانیت را بالا برده و به احساسات و عواطف بشری احترام و ارزش قایل شده است، اعم از این که آنان مسلمان باشند یا غیر مسلمان. ما کاربردهای عملی فراوانی در حیات و سیره ی نبوی در این مورد یافته ایم و در لحظه های سخت و دشوار و به ویژه پس از جنگ ها و نبردها این امر به وضوح برایمان آشکار شده است. می بینیم که رسول خدا (ص) رهنمودهای ارزشمند و توصیه های والای انسانی را در تعامل با زنان و کودکان اسیر شده متوجه یارانش کرده و نهی می کند از این که کودک را از مادرش جدا کنند. ابوایوب انصاری می

گوید: من از رسول خدا (ص) شنیدم که فرمود: «هر کس بین مادر و کودکش جدایی بیندازد، خداوند بین او و دوستانش در روز قیامت جدایی می اندازد]« .[18]

شاید داستان آینده پایان بخش زیبایی برای این بحث باشد به طوری که به زیباترین شکل از رحمت و مهرورزی رسول الله پرده برمی دارد. ابواسید انصاری اسیرانی را از بحرین آورد و آنان به صف کشیده شدند. آن گاه رسول خدا (ص) برخاست و به آنان نگاه کرد، زنی را در حالت گریه دید، پرسید: «چرا گریه می کنی؟» گفت: پسرم در قبیله ی بنی عبس فروخته شده است. رسول خدا (ص) به ابواسید فرمود: «حتماً سوار شو و او را بیاور.» ابواسید سوار شده و به آنجا رفت و او را آورد].[19]

دل رسول الله (ص) برای این زن اسیر سوخت و یکی از افراد لشکرش را مأمور کرد تا به شهر دوردستی برود و فرزندش را بیاورد تا درون آن زن آرام گیرد و اشکش بخشکد!

شاید بارزترین سوالی که در ذهن ما پدیدار می گردد این باشد که آیا در جهان، فرمانده ای که در نبرد پیروز شده باشد، یافت می شود که خود و لشکرش درصدد خوشبختی زنی ساده و اسیر شده باشند که کسی او را نمی شناسد؟

قطعاً پاسخی که همه آن را می دانند و این است که امکان ندارد آن فرد کسی جز محمد رسول الله (ص) باشد! راست گفته است خدایی که در حق پیامبر (ص) فرموده است: (وَمَا أَرْسَلْنَاكَ إِلَّا رَحْمَةً لِلْعَالَمِينَ ][20].[

---

منبع: پیام آور رحمت / مؤلف: دکتر راغب الحنفی السرجانی / مترجم: محمد حنیف حسین زائی (استاد دارالعلوم حقانیه ایرانشهر) /انتشارات: مشهد، حافظ ابرو ۱۳۹۳

1 – ][دوارد ورمسی (مستشرق آمریکایی): در تحقیقی که در مورد جهان قبل از بعثت پیامبر (ص) انجام داده بود، دایره المعارف بریتانیا.

2 – [مکسیموس مونروند: تاریخ حرب الصلیب، ص ۱۷۳– ,۱۷۲

3 – [معجم الکبیر طبرانی (۹۷۷۹)، معجم الصغیر (۴۰۹). هیثمی گفته است: اسنادش حسن است(۱۰۰۰۷.(

4 – [انسان: ,۸

5 – [تفسیر ابن کثیر ,۴/۵۸۴

6 [عبدالملك بن عبدالعزیز بن جریج رومی (۱۵۰– ۷۰ ه) از موالی بنی امیه بوده و یکی از بزرگان علم و دانش و نخستین کسی بود که در علم حدیث کتاب نوشت. صفدی، الوافی بالوفیات ۱/۲۷۵۲، الاعلام للزرکلی ,۴/۱۶۰

7 – [شعب الایمان بیهقی ,۶/۵۲۶

8 – [سیره ی ابن هشام ,۲/۴۷۵

9 – [بخاری (۲۸۴۶) و سنن الکبری بیهقی (۱۸۵۷۰.(

10 – [نوعی از چادرهای هجر بودند.

11 – [دلائل النبوه بیهقی ,۵/۲۶۴

12 – [بخاری (۴۳۷۲)، مسلم (۱۷۶۴)، ابوداود (۲۶۷۹)، نسائی با اختصار (۷۱۲) و صحیح ابن خزیمه (۲۵۲.(

13 – [الوسی: روح المعانی فی تفسیر القرآن العظیم و السبع المثانی ,۲۹/۱۵۵ این حدیث از مراسیل امام حسن بصری است.

14 – [بخاری (۶۹۴۱)، مسلم (۲۳۱۹)، ترمذی (۱۹۲۲) و مسند امام احمد (۱۹۱۸۹.(

15 – [سیره ی ابن هشام ۱/۶۱۷–۶۱۶، الصالحی الشامی: سبل الهدی و الرشاد ۴/۲۷ و السهیلی: الروض الانف ,۳/۵۸

16 – [محمد بن یوسف المواق: التاج والاکلیل ,۳/۳۵۳

17 – [شعب الایمان بیهقی (۴۶۰۶.(

18 – [ترمذی(۱۵۶۶) وگفته است این حدیث حسن و غریب است. مسند احمد (۲۳۵۴۶)، شعیب ارناموط گفته است: حسن است. مستدرک حاکم (۲۳۴۴) وگفته صحیح است. طبرانی فی معجم الکبیر (۴۰۸۰)، سنن بیهقی (۱۸۰۸۹) و صحیح الجامع (۶۴۱۲.(

19 – [مستدرک حاکم (۶۱۹۳) وگفته است: اسناد این حدیث صحیح است و بخاری و مسلم آن را تخریج نکرده اند. سعید بن منصور آن را در سننش روایت کرده است(۲۶۵۴)

20 – [الأنبیاء: ,۱۰۷

# دشهيد ملا عبدالسلام مجروح

# ژوند او کارنامو ته کتنه

عبدالرؤف حکمت

## پيدايښت او ابتدائي ژوند

ملا عبدالسلام د حاجي شکراکا زوی په قوم نورزی په ۱۳۴۵ هـ ش کال کې د هلمند ولايت د نوازد ولسوالۍ د تيزني سيمې په ګلبينه کلي کې په يوه ديندار ه کورنۍ کې دنيا ته سترګې وغړولې

نوموړي د لس کلنۍ په عمر په کليوالو مدرسو کې ديني زده کړې پيل کړې، لومړی يې د نوزاد په ولسوالۍ کې څه موده زده کړې وکړې او بيا د موسی کلا ولسوالۍ ته لاړ، نوموړي لا د ژوند په لومړنيو مراحلو کې و چې په افغانستان کې کمونيستان واک ته ورسيد ، افغانانو جهادي پاڅون وکړ، کمونيستانو په کليوالو سيمو بريدونه او بمبارونه پيل کړ او په دې توګه له هيواد څخه د هجرت لړۍ پيل شوه چې ملا عبدالسلام هم د هجرت ددې لړۍ يو لاروی و

## هجرت او د کمونيزم په خلاف جهاد

ملا عبدالسلام اخند په تانده ځوانۍ کې د خپلې سيمې پرېښودو ته اړ او په جهاد يې پيل وکړ په جهاد کې لومړی شموليت يې د کندهار په ارغنداب ولسوالۍ کې د ملا عبدالغني په جبهه کې و ، له هغه وروسته يې پاکستان ته هجرت وکړ او د څو کلونو په اوږدو کې يې د کندهار او هلمند په بېلابېلو سيمو کې جهاد ته ادامه ورکړه، په دې مرحله کې يې د ديني علومو درسونه هم تعقيبو ، د کندهار او هلمند په مختلفو سيمو سربيره يې د پاکستان په کويټه، چمن، ګردي ځنګل، پنج پای او ګڼو نورو سيمو کې هم درسونه وويل او د تعلم سفر يې تر پنځمې درجې پورې ورساوو

په دې مرحله کې ملا عبدالسلام ډير ځله کندهار ولايت ته د جهادي فريضې د اداکولو لپاره تلو نوموړي د پنجوايي ، ژړۍ، ډنډ او ارغنداب ولسواليو په ډيرو جنګونو کې شرکت کړی دی دغه راز يې د کندهار ښار په داخل کې هم په ځينو چريکي عملياتو کې شرکت کړی

په کندهار سربيره نوموړی د لنډ وخت لپاره په روزګان، فراه او غور ولاياتو کې هم جهاد کړی دا چې نوموړي د جهادي اعداد او نظامي تربيې دوره ترسره کړې وه نو په ټولو خفيفه او ثقيله وسلو کې يې پوره مهارت درلود ، دجهاد په وروستيو کلونو کې يې ډير موده په هلمند کې ولايت کې جهاد ته ادامه ورکړه د سنګين په فتحه او د قلعه ګز او ګرشک په جنګونو کې يې شرکت درلود ، په هلمند کې نوموړي په پيل کې د مولوي عطاء محمد په جبهه کې و خو وروسته ملا محمد نسيم اخندزاده ورته ځانګړې تشکيل ورکړ

په هلمند کې یو تریخ حقیقت د جهاد په وروستیو کلونو کې د تنظیمي جګړو پیښید و، دغه جنګونو چې اصلي سیمه یې دهلمند شمالي ولسوالۍ وې د حزب ،حرکت او جمعیت د مختلفو قومندانانو ترمنځ وو چې د طالبانو د اسلامي تحریک د قیام تر وخت پورې یې دوام وکړ او زرګونو جنګیالي او عام بې طرفه خلک په کې له منځه لاړ

کله چې دغه تنظیمي جنګونه پیل شو لملا عبدالسلام له دغې نزاع څخه د خلاصون په خاطر په خپله سیمه د نوزاد په تیزني کې یوه دیني مدرسه تاسیس کړه ،دغه مدرسه څلور کاله فعاله وه چې سلګونه کشرانو او مشرانو طالبانو په کې دیني زده کړې حاصلې کړې خو وروسته د یوه ځایي ټوپکمار قومندان لخوا د نوموړي مدرسه وربنده کړای شوه په دې وخت کې د مجاهدینو د حکومت په لومړي کا نوموړی د حج د مبارکې فریضې د اداء کولو لپاره حرمینو ته لاړ او دغه ستره فریضه یې ترسره کړه له حج څخه له راګرځیدو وروسته نوموړي تر هغه وخته یوازې د ځان او خپلو مجاهدو ملګرو د ساتلو هڅه وکړه او په کور کیناست ترڅو د طالبانو اسلامي تحریک راپورته شو

## د طالبانو په تحریک کې شمولیت

کله چې د کندهار په میوند او ژړۍ ولسوالیو کې د طالبانو قیام پیل شو او وروسته یې د کندهار په ډنډ ولسوالۍ کې مرکز جوړ کړ دغه مهال د ملاعبدالکریم په نوم یو تن مجاهد چې د ملا عبدالسلام نږدې ملګری و دطالبانو له تحریک سره مل و، هغه ملا عبدالسلام ته خط ولیږه چې راشه او د طالبانو له دې تحریک سره ملګری شه،نوموړی د طالبانو له تحریک سره په رابطه کې شو او کله چې د طالبانو قطعات د هلمند په خوا لاړل نوموړی له خپلو ملګرو سره د هلمند مرکز ته راغی او د تحریک له نظامي قومندان ملا محمد اخند سره یې له نږدې ولید ، له همدې ځایه یې د طالبانو له تحریک سره عملي خدمت شروع کړ

ملا عبدالسلام د خپلو خاطراتو یو کوچنی کتاب لیکلی چې د اسلامي امارت دواکمنۍ په مهال ل۱۳۷۸ لمریز کا کې په هرات کې چاپ شوی دی، نوموړي په دې کتاب د هلمند د نیولو په اړه لیکلي د هلمند د مرکز او ګرشک مهمې سیمې د پخوانیو قومندانانو لکه میرولي، عبدالرحمن جان او معلم یوسف په لاس کې وې دوی له پخوا څخه ډیرې جرګې لیږلشوي وې چې له پاټکمارۍ لاس واخلي،خو دوی هیڅ هم نه منل نو ځکه دلته په دوی باندې عملیات پیل شو ،د لنډو عملیاتو په ترڅ کې د هلمند ټولې مرکزې مهمې سیمې ونیولې او ټوپکیان زیاتره ونیو شو چې ټو لبیرته خوشې شو لاو مشران یې د شمالي سیمو غور یا د سرحدي ولسوالیو په خوا وتښتید

## د هلمند جنګونه او د هرات فتحه

د هلمند له تصفیې وروسته دوه لویې پیښې وشوې د یوسف په نوم تښتیدلي قومندان په نوزاد حمله وکړه او دا ولسوالي یې له طالبانو ونیوله چې بیا د ملا محمد اخند او ملا عبدالسلام په ګډون طالبانوورباندې ځوابي حمله وکړه او ولسوالي یې بیرته ونیوله، له دې وروسته د هلمند تښتیدلي قومندانان د دیشو ولسوالۍ په سرحدي غرنۍ سیمه چوټو کې رایوځای شو او لوی مرکز یې جوړ کړ چې هره شیبه یې طالبان تهدیدو ، د اسلامي تحریک د مشر په لارښوونه د ملا عبدالسلام او ګڼو نورو تکړه قومندانانو په شمو د چوټو په خوا تشکیل وشو چې په نتیجه کې یې په دې سیمه کې د تښتیدلیو ټوپکیانو مراکز له منځه یووړلشو لاو هلمند د تل لپاره ترې خلاص شو

دغه مهال ملا عبدالسلام د نوزاد ولسوالۍ د ولسوا ل او د ګرشک د فرقې د قومندان په حیث بیلابیل مسؤلیتونه ترسره کړ ، نوموړی به ډیر ځله د هیواد په

لویدیځ کې د فراه په ولایت او د هلمند په لویدیځو سیمو کې و هلته چې د تورن اسمعیل خان او طالبانو ترمنځ پرلپسې جنګ روان و

د ۱۳۷۴ هـ ش کال په اوړي کې چې د هیواد په لویدیځ کې لوی تحول راغی او د فراه، نیمروز، هرات او بادغیس ولایتونه د طالبانو لخوا ونیول شو، ملا عبدالسلام په دې سترو فتوحاتو کې د نورو جهادي مشرانو ترڅنګ مخکښ رول درلود، نوموړي په خپل کتاب کې ددې پېښو تفصیلي جریان بیان کړی چې دلته یې تاریخي اهمیت ته په پام سره خلاصه تقدیموو

د اسمعیل خان او غفار اخندزاده ځواکونو چې له کابل څخه احمدشاه مسعود هم ورته سلګونه جنګیالي رالیږلي و په یوه پراخ تعرض سره یې د فراه په ګلستان کې د طالبانو په کرښو برید وکړ، ګلستان یې ونیو او وروسته د دلارام له ولسوالۍ هم طالبان راپه شا کړ، ملا عبدالسلام چې په ګرشک کې یې د فرقې مسؤلیت و لیکي: زه د دلارام په خوا روان شوم خو په لاره ملا فاضل اخند په مخه راغی ویل یې چې دجګړې عمومي قومندان ملا محمد اخند ورته امر کړی چې په شوراب باندې خط ټینګ کړئ، ځنځیر واچوئ او طالبان مه پرېږدئ چې په شا لاړ شي، وروسته موږ په شوراب کې په وضع الجیش اخته شوو، ملا محمد آخند هم راغی ما ته یې وویل چې ته ګرشک ته لاړ شه هلته احتیاطي دفاعي تدابیر برابر کړه او مازدیګر بیرته شوراب ته راشه، زه ګرشک ته راغلم او مازدیګر له څو تنو ملګرو سره بیرته دشوراب په خوا روان شوم، خو په لاره د حوض خشک په سیمه کې ملا دادالله اخند او ګڼ نور طالبان په مخه راغلل، ډیر غمجن و ویل یې چې ملا محمد اخند په شوراب کې شهید شو او طالبان پر شا را روان دي، په دې وخت طالبان سخت مایوسه و، او د مقاومت کوم حوصله نه وه ورپاته په همدې وخت کې له کندهار څخه د امیرالمؤمنین فرمان راورسید چې ملا رحمت الله اخند یې د شهید ملامحمد په ځای د جنګ مشر ټاکلی و، په همدې وخت کې د اسمعیل خان او مسعود ځواکونو له یوه پراخ تهاجم او نه ماتیدونکي دریځ سره په مخ را روان و او د ګرشک ډېرې سیمې یې هم نیولې وې، د ملا رحمت الله اخند په مشرۍ د طالبانو مشرانو د ځوابي برید عاجل پروګرام جوړ کړ، د ۳۰۰ کسانو په تشکیل سره یې په دریو استقامتونو د ځوابي عملیاتو نقشه داسې طرحه کړه چې ۱۰۰کسان به د ملا دادالله اخند، ملا سراج الدین او ملا خان محمد په ګډون د بغرا په استقامت ځوابي حمله کوي، د ملا رحمت الله په مشرۍ به سل کسان د نفرسنګي چهارراهي په استقامت د سرک ښي اړخ ته برید کوي او سل تنه به د ملا عبدالسلام تر مشرۍ لاندې مخامخ په ډامبر /سرک باندې متقابل برید کوي

ملا عبدالسلام لیکلي: سهار وختي جنګ پیل شو، موږ اته تنه ملګري په یوه لنډ کروزر کې ددښمن قواوو منځ ته ورداخل شوو، اکثرو خلکو فکر کړی و چې ملا عبدالسلام د غفار اخندزاده پخوانی ملګری دی او ورتسلیم شو، خو موږ د سهار په تیاره کې له ټولو جهتونو سره په توافق عملیات پیل کړ، زموږ په خوا کې د جنګ له پیل سره لومړی ټانګ د ملازړګي لخوا وویشتل شو او په ټولو خواوو کې جنګ زور واخیست، دښمن سختې وسلې وکارولې خو د پرمختګ مخه یې ډب شوه او شاتګ ته اړ ایستل شو، تر مازدیګر پورې سخت جنګ وشو او ددښمن لښکر بیرته د حوض خشک سیمې ته په شا ووهل شو، په جګړه کې طالبانو ته تر اندازې زیات وسایط، وسایل، لوژیستیکي مواد او بندیان په لاس ورغلل، د اسمعیل خان له کسانو پنځلس زغروال ټانګونه چالان د جګړې په ډګر پاته وو، د چهل میلو او په لوژیستیکي موادو بار ټیلر په ګډون مو ډیر مواد غنیمت کړ په همدې ورځ امیرالمؤمنین ملا محمد عمر مجاهد ګرشک ته تنها په موټر کې راغی د جګړې په لومړی کرښه کې یې له مشرانو مجاهدینو سره ولید خو مجاهدینو ورباندې تاکید وکړ چې بیرته کندهار ته لاړ شي ځکه په ګرشک کې د بمبار خطر و، وروسته د ملا محمد رباني، )حاجي معاون (صاحب ملا مشر اخند، حاجي بشر او نورو مشرانو سره یوځای ګڼ شمیر طالبان راغلل ددلارام له نیولو وروسته دلوېې لارې په سر تر یوه پله

لانديٍ د اميرالمؤمنين تر مشرۍ لاندې غونډه وشوه او د فراه او هرات د سرتاسرۍ فتحې لپاره عاجل تشکيلات وشول چې بيلابيلو جهادي قومندانانو ته بيلابيل استقامتونه وروسپارل شول تردې چې الله تعالى ټولو په خپلو مسؤليتونو کې بريالي کړل او د هرات تاريخي ښار د طالبانو لاس ته ورغی

## د هرات د قول اردو د قومندان په حيث

دهرات له فتحې وروسته نوموړی د هرات ولايت د څلورم نمبر قول اردو د قومندان په حيث وټاکل شو، خو د نوموړي جهادي ملګري د بادغيس او هم د کابل په جنګي کرښو کې په دندو بوخت و، دهرات له فتحې شپږ مياشتې وروسته نوموړی د کابل جنګي خطوطو ته راغی، همدغه مهال چې د احمدشاه مسعود قواوو د عينک په سيمه کې د طالبانو په خط بريد وکړ او ډيرې سيمې يې ونيولې د ځوابي عملياتو لپاره ملاعبدالسلام او زړګونه نور طالبان عينک ته لاړ ، د ځوابي عملياتو په ترڅ کې يې ټولې سيمې له مسعود څخه بيرته ونيولې او آن د کابل ښار ترلمنو ورسيد خو څرنګه چې احمدشاه مسعود ټولې سيمې په ماينونو پوښلې وې ګڼ طالبان په ماينونو شهيدان او ژوبل شو په دې لړ کې د ملا عبدالسلام موټر هم په ماين منفجر شو چې په نتيجه کې يې دده ملا او دواړه پښې ماتې شوې

پښې يې چې ټو هډوکي يې ريزمريز او له منځه تللي و دايما معيوبې شوې که څه هم د اسلامي امارت مشرتابه د نوموړي په علاج ډير کوښښ وکړ پاکستان او جرمنی هيواد ته يې وليږه خو له ټولو معالجو سره سره يې بيا هم پښې يو مخ روغې نه شوې بلکې مجبوروو چې په لکړو وګرځي

د نوموړي له جراحت وروسته دده مسؤليت مؤقتا دده مرستيال ملا عبدالولي زړګي ته وسپارل شو چې د کابل په فتحه کې يې بارز رول درلود ملا زړګی وروسته د مزار په لومړنۍ فتحه کې د جنرال مالک له قواوو سره د سخت جنګ په ترڅ کې شهيد شو، ملا عبدالسلام چې له معالجې راستون شو له ټولو معيوبيت سره سره يې خپلې دندې ته دوام ورکړ، په دې وخت کې د شمال ټولو ولايتونه يو ځل بيا تصفيه او د اسلامي امارت تر واک لاندې راغلل چې د ملا برادر اخند، ملا فاضل اخند او نورو مشرانو سره يوځای ملا عبدالسلام هم په کې د هرات د قول اردو د قومندان په حيث نقش درلود، نوموړي تر هغه وخته خپلې وظيفې ته دوام ورکړ ترڅو د امريکايانو لخوا په افغانستان يرغل وشو او د اسلامي امارت مجاهدين د ټولو ښارونو غونډي له هرات ښار څخه هم ووتل

## د امريکايي يرغل په وړاندې جهاد

د هرات له سقوط وروسته ملا عبدالسلام خپل اصلي وطن نوزاد ته راغی او څرنګه چې د امريکايانو لخوا ورته خطر متوجه و، نو له څه مودې ښکاره ژوند وروسته يې مخفي ژوند پيل کړ، نوموړي ۳ کاله او ۳ مياشتې په مخفي حالت کې ژوند وکړ چې يوازې ۲ تنه اعتمادي ملګرو يې ورسره رابطه او ليده کاته درلود ، په دې وخت ملا عبدالسلام خپلو ملګرو ته د جهاد ترغيب ورکاوو او د عملياتو لپاره يې بيلابيل هدايات ورکو

وروسته نوموړی د علني جهادي ډګر ميدان ته راووت، د نوزاد، کجکي، موسی کلا او نورو سيمو تر منځ يې تګ راتګ پيل کړ، د اسلامي امارت له مشرانو سره په رابطه او مشوره يې د مجاهدينو د تنظيم چارې پيل کړې، په دې لړ کې نوموړي يوځل د هلمند، فراه او روزګان ۲۰۰ تنه مجاهدين د نوزاد په تيزني سيمه کې د شپې په مهال راټول کړ او وينا يې ورته وکړه، په همدې غونډه کې هدايت ورکړ چې علني جهاد پيل کړئ او وطنو ته کوز شئ دغه راز ۲۰۰ صندوقه د ثقيل مرمۍ او نور هم لوی مقدار مهمات او وسلې يې ورباندې وويشلې او د جهادي عملياتو د پراختيا قومنده يې ورکړه

## شهادت

د ۱۳۸۸ هـ ش کال د ثور د مياشتې په ۸ نيټه هغه مهال چې ملا عبدالسلام مجروح د نوزاد ولسوالۍ د تيزني علاقې د سرپلې په سيمه کې مخفي ژوند کاوو، ددښمن لخوا يې ستلائټ ټيلفون کشف شو او چاپه يې ورباندې ووهله، ملا عبدالسلام له امريکايانو سره چې د جټ طيارو

او چورلکو ملاتړ هم ورسره و جنګ پیل کړ خو تنه امریکایان یې ووژل او وروسته د دښمن لخوا وویشتل شو او د شهادت لوړ مقام ته ورسید او په خپله پلرنۍ هدیره کې خاورو ته وسپارل شو .انالله و اناالیه راجعون

د شهید ملا عبد السلام مجروح ورور او ځایناستی مولوي محمود خان ثاقب د ملا عبد السلام د شخصیت په اړه وایي، چې نوموړي په نظامي جهادي نبوغ سربیره د خیریه کارونو هم ښه ذوق درلود ، په خپله سیمه کې یې یوه لویه مدرسه اباده کړه، دغه راز یې په مختلفو سیمو کې له ګڼ شمیر مساجدو او مدارسو سره په ودانیزو چارو کې مرسته کړې، د نوزاد او غور ترمنځ د لارې په جوړولو کې یې هم ډیرې هڅې وکړې چې اوس د خلکو لپاره لویه هوسایي ده، نوموړی د منصب شوقي نه وا او له انتقام څخه یې عفوې ته ترجیح ورکوله

په خپله اصلي سیمه کې ځینې خلک چې دده په کور او قریبانو یې بیا بیا چاپې وهلې وې، ددوی کور یې د حکومتي عسکرو په توسط لوټ کړی و ، او وروڼه او قریبان یې بندیان کړي و، کله چې په سیمه کې بیرته د طالبانو حاکمیت راغی، هغو خلکو له خپلې سیمې کډې کولې څکه ویرید چې ملا عبد السلام به انتقام ترې واخلي مګر ملا عبد السلام ورته احوا لولیږه چې د ده لخوا دې خاطرجمع اوسي، یوازې که اسلامي شریعت ورته کوم مجازات ورکو هغه به د محکمې کاروي مګر دی د شخصي انتقام نیت نلري

ملا عبد السلام شهید شو مګر جبهه یې اوس هم فعاله ده او په زرګونو مجاهدین دده د ورور تر مشرۍ لاندې په مختلفو سیمو کې جهادي عملیات مخ ته وړي

رحمه الله تعالی

## چاغوالی اته کلن ماشومان هم د زړه په رنځ اخته کولای شي

ډېر خوراک، ناسته، خواږه، کمپیوټر او ویډیو ګیمونه، ماشومان، نه یوازې سست، کمزوري او بې کاره اموخته کوي، بلکې، دې سره یې وزن هم زیاتیږي او چاغوالي سره یې د ګڼو نورو ناروغیو د پېښېدو چانس هم شته.

په یوه نوې طبي څېړنه کې ویل شوي، چې چاغوالی کوچني اته کلن ماشومان هم د زړه په رنځ اخته کولای شي.

د امریکا فلوریډا ایالت کې د زړونو د طبي څېړنې یوې ادارې په خپل تازه راپور کې ویلي، چې دوی په شلو چاغو ماشومانو او شلو عادي وزن لرونکو ماشومانو څېړنې کړې او بالاخره دې پایلې ته رسېدلي، چې چاغو ماشومانو کې د زړه رنځ د پېښېدو چانس څلوېښت سلنه د عادي وزن لرونکو په پرتله زیات وي.

د ډاکټرانو په وینا د چاغوالي له امله د زړه پلې غټیږي او دې سره بیا زړه په مناسبه توګه وینه نه شي پمپ کولای.

څېړنه کې دا هم ویل شوي، چې د چاغوالي له امله ماشومان په ساه بندۍ، لوړ فشار او ذهني ناروغۍ اخته کېدای شي.

د څېړنکو له نظره، په چاغو ماشومانو کې دا ډول ناروغۍ په اسانه نه ښکاري، مګر د «ایم ار ای» او نورو قوي معاینو په واسطه ډاکټرانو ته څرګندېږي، چې چاغ ماشومان په لږ عمر کې هم د زړه په ناروغیو اخته کېدای شي او دا ناروغي یې د مرګ لامل ګڼلې ده.

څېړونکو په خپلو سپارښتنو کې ویلي، چې د دې ډول ناروغیو مخنیوی ډېر اسانه دی، مګر تر ټولو مهمه ونډه په کې باید د مور او پلار وي، چې ماشومانو ته مناسب خواړه ورکړي، د ورزش او نور ورته کارونه وکړي، چې وزن یې زیات نه شي او په عادي وزن خپل ژوند پر مخ بوځي.

# د درېو اتلانو کارنامې

لطیف عزم

- عالم او اتل شهید مولوي عبدالواحدصابر (صدر) رحمه الله
- دشهیدمولوی شاه نور (چپاؤ) پیژندنه
- غښتلی مجاهد ، شهید مولوي حبیب الرحمن ، متقي ژوندااوشهادت ته کتنه

## عالم او اتل شهید مولوي عبدالواحدصابر (صدر) رحمه الله

له شک پرته چې داسلام مقدس دین به د شهیدانو په وینو ساتل کېږي، د شهیدانو وینې به د نورو راتلونکو نسلونو لپاره د لارې مشالونه وي، د شهیدانو د وینو په برکت به راتلونکي نسلونه ژوندي پاتې کېږي.

علمای کرام فرمایي چې د شهید د ژوند معنی دا ده چې نوم به یې تر قیامته پورې ژوندی دی؛ هغه داسې چې په قرآن کریم کې د ده ځانګړې یادونه شوې ده، تر څو چې دا دنیا وي، دا قرآن موجود وي، دشهیدانو نیک نوم او یاد به هم ژوندی وي.

په رښتیا هم چې دشهید د ژوندیتوب یوه نښه همدا کېدای شي چې خلک یې تل یادوي، د خلکو د ژبو په سر وي، دخلکو په زړونو کې ځانګړی ځای لري، هر څوک شهید ته درناوی لري، مینه ور سره لري، ځکه خو په اسلامي ټولنو کې د شهید کورنۍ په خپل شهید ویاړي، په داسې حا کې چې هېڅوک د خپل کوم دوست، یا ملګري په عادي مرګ نه ویاړي.

شهید مولوي عبدالواحد صابر چې مشهور په صدر صاحب وو ، زمونږ هغه دیني عالم ، دتقوا او دیانت بیلګه ، دکفارو اوداسلام دغلیمانو دسترګو ازغی وو او دشجاعت لوی غر وو چې دخپل عمر ټوله برخه او دژوند ټولې شپې ورځې او لحظې یې دالله ددین لوړاوی ، داسلامي شریعت دنفاذ ، په ټولنه کې دديني فهم ترویج او له ځمکې څخه دفساد له منځه وړ لیې ستر ارمانونه وو چې بالاخره یې خپله قیمتي ککره دهمدغو مقدسو ارزو ګانو په هیله قربان او دالله لور ته ولاړ.

### قومندان صدر صاحب څوک وو ؟

داسلامي امارت دغه اتل اوپیاوړی جهادي قومندان شهیدمولوي عبدالواحد صابر چې دمجاهدینو په منځ کې دخپل خاص حیثیت او درناوي له مخې په صدر صاحب مشهور او یادیده دلوګر دمرکز دسرسنګ دجهاد پروره سیمي ، دناصرو په کلي کې دې فاني دنیا ته په کا ل۱۳۵۷ دقوس په ۱۳ نیټه سترګي رڼي کړي

## زدکړې :

ابتدايي درسونه يې دخپل کلي دجومات له امام او هم يې دلوګر ولايت دمرکز په عمريه دارالعلوم کې لاسته راوړي ، متوسط درسونه يې دننګرهار دمرکز په صديقيه دارالعلوم ،دغه رازد ګاونډي هيواد پاکستان په خيبرپښتونخوا دباغبانانو په کمپ او هم په نورو بيلابيلو مدرسو کې ترلاسه اوتکميل کړي ، لوړي زدکړي او دفضليت دستار يې په کال ۱۳۸۶ لمريز په دارالعلوم اسلاميه زرګري کې له مشهور ديني عالم ، شيخ المشايخ ، شيخ القران والحديث علامه عبدالستار جان رحمه الله څخه وتاړه .

## تدريس :

شهيد مولوي عبدالواحد صابر ، له فراغت سره سم ددينې علومو اوفنونو په تدريس اونورو خلکو ته درسولو په مقدسه دنده پيل وکړ ، څه موده يې په خپله منطقه دسرسنګ په دارالعلوم کې او نور تدريس دپاکستان دخيبرپښتونخوا داضاخيلو ، په نعمانيه دارالعلوم او داکوړي په فاروقيه جامعه کې په ډېر اخلاص ترسره او په لږه موده کې يې دخپل خاص ذهانت له مخې ديوه کامياب استاد درجه خپله کړه .

## جهاد او مبارزه :

اتل شهيد دزدکړې له مهاله جهاد او مبارزې سره خاصه علاقه او مينه وه ، هر وخت به چې فرصت ورته پيداشو دجهاد سنګرونو ته به يې ور ،کله چې هيواد باندې امريکا اوغربي ښکيلاک هجوم راوړ دمجاهد صدر صاحب په رګونو کې دجهاد اوقرباني جذبه ځوچنده شوه ، دلوګر ولايت په مربوطاتو کې يې له خپلو ميړنيو ملګرو سره دکفارو او دهغوی دګوډاګيانو په خلاف په بريدونو کې برخه اخيسته ، ترڅو چې صدرصاحب دخپل خاص مهارت له وجې چې د ( RP G توغندي په ويشتلو کې يې لاره ډيرغلګرو بې شميره شوبلي او وسايط ويجاړ او په لسهاوو خارجي يرغلګر او ګوډاګيان دجهنم کندي ته وليږ

## جهادي دندي :

شهيد صدرصاحب چې دنيکو اخلاقو ، خاوند اوپه جهادي تدبير کې نوم لاره ګڼي دندي ورسپارل شوي او په خورا صداقت او اخلاص يې نه داچې سرته ورسولې الله تعالی ترې کامیابه او سرفرازه هم وويست ،چې ځيني يې په لاندې ډول دي :۱ـ دنامتو او زړور مجاهد شهيد کريم الله کامران له شهادت اونوميالي مجاهد مولوي ضياالحق حامد له اسيرکيدلو ورسته ددواړو دلګيو دسرپرست په توګه ـ۲ـ دلوګر ولايت دمرکز دنظامي کميسون دريس په صفت ـ ۳ ـ دلوګر دمرکز دولسوالی دسرپرست په حيث ـ۴ـ داسلامي امارت په تشکيلاتو کې دلوګر دمنتظره قطعي دقومندان په توګه

## شهادت :

داسلام دغه ستر غازي او لوی مجاهد دننګرهار ولايت دپچيراګام په ولسوالی کې له دښمن سره دمقابلې په وخت د۱۴۳۶ ق کال دشوال په ۱۹ نيټه ديرغلګرو دډرون الوتکې دتوغندي هدف وګرځيد او دشهادت جام يې نوش کړ ، اناالله وانااليه راجعون .

ياده دې وي چې له مرحوم شهيد مولوي عبدالواحد صابر څخه پنځه ځامن هريو عبدالصمد ، امرالله ، موسی کليم ، محمد ، محمود او يوه لورکی پاتې ده ،

## تاثر او خاطره :

دمرحوم صدرصاحب دشخصيت په اړه دنوموړي نيږدي او دډير وخت ملګری اودلوګر ولايت نوميالي جهادي قومندان محترم مولوي ضياالحق حامد خپل تاثر او خاطره داسې وړاندې کوي :شهيد مولوي صدرصاحب زما ډيرنيږدې اوددیرې ډيرې مودې ملګری وو، دتعليم یاطالبی له اولې ورځي راواخله بيا ترجهادي سلسلي اوشهادت شيبوپورې په جريان کې وو اوکلکه ملګرتیامو لرله ، لوړ علمي استعداداوذهانت يې لاره لکه څنګه چې دفراغت په سند کې ورته دممتاز توري ليکل شوي وو الله تعالی ورته همداسې ممتازخویونه ، نيک اخلاق اوحقپاله ضميرلورولی وو، په درس اوتدريس دواړوکې بريالی دښه نوم څښتن اوهم دجهاد په ميدان کې لوی اتل اوشجاع مجاهد وو

مولوي ضياالحق وايي :منلي صدرصاحب په جهادی بهيرکی ډيرمسؤليتونه پرمخ بوتلل اوورله غاړي وو ، خو الله تعالی له ټولو پاک سپيڅلي راوويست اوکماحقه يې ترسره کړ ل، ضمير يې هيڅکله دانه خوښوله چې له کوم مسؤليت نه بده استفاده وکړي

دشهيدمولوي صاحب له ماسره ډيري خاطري دي، څکه ترڅوچې امريکايانودخپل قوت نمايش په چاپووکړمونږ بياخپلو کوروکې يوه شپه هم نده کړي ټولي شپي زمااوصدرصاحب تقريبايوځای وي، چی نږدې يوه لسيزه ترې جوړيږي نو هره شپه يوه يوه خاطره ده

يوځل دامريکايانولپارکمين ته لاړو صدرصاحب سره ارپيجي ووتقربيا لس متری دسرک ته دی ماکيناوو، ماته يې وويل لدې ځايه خودوهم ډز نه کيږي مطلب يې داووچې دلته خوسړی تردوهم ډز پورې دښمن ولي، ماورته وويل الله به خير کړي همدلته کينه ، مجاهد صدرصاحب له همدې ځايه يوپير پری وکړه ، رشتياهم په نظامي لحاظ هغه ددوهم پيرځای نه وو، بيايی ماته ويل زه دځان په غم کی نه يم هسي نه چې امريکايان بي صدمي اوپرته له تلفاتو تيرشي ، دغه خبره ديوه مجاهد واقعا سړي ته يوتآثروركوي چې دځان په غم کې نه وي خو دښمن ته دصدمي په غم کې وي، دايوه خاطره اوتاثر وه ، ددی مخکينی صفاتو باوجود هغه دنيکواخلاقوخاوندووځکه دعاموامسلمانانواومجاهدينوسره يی رويی ډيره عادلانه وه خصوصآ زمونږددلګی دملګرو سره يی رويه ديوعادی ملګری په څيروه سره لدی چی زمونږ ددلګی دمعاونيت مسؤليت ترډيروخته دنوموړی په غاړه وو

روح يې ښاد اويا دېې تل اوجنت الفردوس يې نصيب

## دشهيد مولوی شاه نور(چپاؤ) پيژندنه

**نــــوم** : مولوی شاه نور چپاؤ دنورمحمدځوی دلغمان ولايت د دولت شاه ولسوالی د دګوړان درې د رندی کلی اوسيدونکی وؤ

**زده کـــړه** : ابتدايي زده کړه يې پخپل کلي کي دمسجد دملا امام نه وکړه بيا نورو زده کړولپاره دهجرت کور پاکستان ته ولاړ هلته يې په مختلفومدرسوکي درسونه وويل په خاص ډو دهيواد مشهور اوجيد عالم حضرت شيخ القرآن والحديث مولانا محمود شاه تيلوي به يئ ډيراداوه چې ځما خاص استاد دی

نوموړي فنون لا ټو لسرته نه ؤ رسولي چې دشوروی اتحادپه مقابل کې جهاد شروع شو ، هماغه وو چې اتل اوقهرمان چپاو دجهاد لپاره دحقانی صاحب ملګروسره يوځاي شو ، په خوست ، پکتيکا اوپکتيا کې له مجاهدينوسره او ړه پراوړه دجهاد پاکه فريضه سرته رسوله يعني درسونه ترينه پاتي شو ل .کله چې امريکاپه افغانستان باندی يرغل وکړ په

دغه وخت کې بیامولوی صاحب هجرت وکړ،دهجرت په اوائلوکې په کا /۱۴۲۴هـ /په الجامعه الاسلامیه زرګری ضلع هنګو کې داخله واخیسته وړه دوره ئې هلته وکړه .په کا ۱۴۲۵هـ کې لویه دوره دزرګري په جامعه کې له شیخ الحدیث حضرت العلامه عبدالستارجان رحمه الله څخه وویله اودفراغت سند یې تري ترلاسه کړ .

**د جهـــاد پیـــل** : دمولوي صاحب د ظالبئ دوره وه چې سرو لښکرو په افغانستان یرغل راوړ ، هماغه وو چې مولوي صاحب په خپلې سیمي کې په جهاد اومبارزي سربیره د حضرت مولاناجلا لالدین حقانی حفظه الله خواته ورغی او دهغه له ملګرو سره یې په خوست ، پکتیا او پکتیکا کې په تودو سنګرونواومهمو عملیاتوکې برخه اخیسته

په هغه وخت کې د حقاني صاحب دری ۳ (جبهی وي یو جبهه چپاؤ [نومیده په او لکې دهغه مسؤ لمولوی رحیم الله کندوزی وؤ ورسته بیا محترم مشرحقاني صاحب مولوی صاحب شاه نور دنوموړي جبهي قومندان مقرر کړ پدی وجه اونسبت مولوي صاحب په چپاؤ سره مشهور شو ، کله چې خوست فتح شو محترم حقانی صاحب چپاؤ ته په هغه وخت کې ۱۷۰۰۰ (زره کلداري د انعام په توګه ورکړي وي

**د صلیبی یرغل مقابل کې جهاد**: د فراغت نه وروسته کله چې د صلیبانومقابل کې دجهاد تحرکات شروع شو محترم مولوی صاحب چپاؤ هم جهاد لپاره خپل ولایت ته راغی د کابل جلا لآباد دلوئ لاری مسؤ لمقرر شو او دخپل ولایت معاون هم وؤ بیا وروستو په کا ۲۰۰۶ع /کې د دولت شاه ولسوالی لپاره مسؤ لپه حیث مقرر شو ، په کا ل ۲۰۱۵ع /دلغمان ولایت لپاره د دعوت والارشاد مسؤ لمقرر شو

**جرأت او شجاعت** : مولوی صاحب چپاؤ د سنګر شه تکړه زړه ور ، مطمئین اومشفق مجاهد او مسؤ لوؤ چې کله به د جنګ ترتیب کیده که به هغه تعارضي او یا کمین پروګرام وؤ د ملګرو دمورچو دتقسیم سره سره به یې هغه خطرناکه مورچه اوموقعیت دځان لپاره انتخاباوه دښمن ته به نیزدې کیناست چې هغوته زیات تاوان او تلفات ورسوي او هم د مجاهدینو وضیعت او مورا لپه ځای وساتي ،

سره له دی چې مولوي صاحب د عمر ، علم او مسؤلیت له لحاظ منل شوی لوړ شخصیت وو خو بیایې هم دملګرتیا او اخلاقو وضیعت داسی وؤ لکه چې دټولو ملګرو همزولی وي ، په هغو جنګونوکې چې خپله یې ترتیب او برخه پکې اخیستي شمیریې له سلهاوو هم اوړي ، څوځله یې ځان په فدایي ګروپونوکې هم لیکلی وو

**شهادت** : محترم مولوي صاحب چپاؤ سره دخپلوملګرو د دولت شاه ولسوالی زرکمر سیمه کې داربکیانو په پوسته داپریل ۹ نیته ۲۰۱۵ع ۲۰ جمادی الثانیه ۱۴۳۶هـ /د شپی ۱۲ (بجی شاوخوا تعارضی بریدوکړو پوسته یې فتح اربکیان یې څه مړه ، زخمیان او نور په تیښته بریالي شو ل قهرمان مولوي صاحب سره له خپلو ملګرو دجګړې له ځایه دبومبي کلي ته ولاړ هلته یی دمه جوړه کړه ، کله چې له هغه کلي خپل ځای ته دستنیدو په نیت روان شو او څه مز ل یي هم کړی وو له خپلو ۷ تنو ملګروسره دړرون قاتلي الوتکي راحصار اودخپل صلیبي توغندي هدف یي وګرځو اوټو لیي ځاي پرځای شهیدان کړ ، اناالله وانااليه راجعون .د شهیدو شوو ملګرو نومونه یي په لاندي ډو لدي ، احمدخان ، کامران، مولاناسعدالله ، لاهوری خان ، عبیدالرحمن ، محمدامیرذاکر :تقبلهم الله

**اولاد** :_ مولوی صاحب چپاؤ د خپل ځانه ورستو ۱۱ (اولادونه ۵ (نارینه ۶ (انجونی ۲ کونډی پریښې دي

# غښتلی مجاهد شهید مولوي حبیب الرحمن )متقي) ژوند او شهادت ته کتنه

د اسلام مقدس دین چې تر دې څوارلسمې صدۍ پورې کټ مټ په خپله بڼه را روان دی او په خاورینې کره یې څرک مخ په زیاتېدو دی دا د اسلام د دین د رښتنو پلویانو او زلمیانو د هغو هڅو پایله ده چې ایثار یې عادت او شهادت یې ستر هدف دی ؛ کنه د نړۍ فرعونیانو خو د خپلو شومو اهدافو په موخه له هیڅ ډول دسیسو څخه دریغ نه دی کړی او د همدې ناولو ارادو د پلي کېدو لپاره یې په ګران هیواد هم د ترهګرۍ په پلمه د نړۍ له ټولو تایید شویو بنسټونو څخه مخ وګرځاوه او نور د (ناحقې) دنیاوال یې هم ځان سره یو ځای کړل، او په ډیر وحشت سره یې بې ګناه افغانان د خپل شوم هدف د پلي کېدو لپاره قرباني کړل ؛ خو لکه څنګه چې د خراسان خاوره هم له یرغلګرو سره د تاریخ له رایاده کلک حساسیت لري او لا تراوسه ورکې کوم غلیم د بې غمۍ په خوب نه دی اموخته شوی ؛ نو دلته هم یو څو ک شته چې د همدغو غاصبګرو خولې یې چې د اسلام له منځه وړلو لپاره یې په څرګند او مرموز ډول کاروي، له پاک دین څخه په کلکه اړولې.

هو ، هم د دغو لارویانو د ایثار له بهیر څخه یو هم ګران او محترم مولوي صیب فتح الله دی.

مولوی صیب حبیب الرحمن (متقي) چې د ملګرو تر مینځ په "فتح الله" یادیده، د لوګرولایت د برکي برک ولسوالی د شیخانو د کلي اوسیدونکی چې په کال ۱۳۶۳هـ کې په یوه دین دوسته کورنۍ یې دنیا ته سترګې وغړولې.

## زده کړه او فراغت:

ابتدایي زده کړې یې د سیمې له علماو او تکړه استاذانو څخه وکړې ، منځنۍ زده کړې یې د هیواد په بیلابیلو مدرسو کې له مشهورو مدرسینو څخه ترسره کړې ، بالاخره د مبارکو حدیثو د دورې په موخه د زرګری مشهورې مدرسې دارالعلوم اسلامیه ته ولاړ ، هلته یې له نامتو او پیاوړي عالم ، پیر طریقت ، شیخ الحدیث والقرآن عبدالستار جان "کابلي" (رحمه الله تعالی) څخه د مبارکو احادیثو دوره ولوسته او د نبوي احادیثو فراغت سند یې تر لاسه کړ.

## اسلامي امارت سره اړیکه:

محترم مولوی صاحب فتح الله له فراغت څخه لا تر مخه د هیواد نامتو او زړور شخصیت شهید مولوی صاحب میر احمد ګل "هاشمي" (رحمه الله) سره په ننګرهار او کونړ کې د امارت په لیکو کې په خدمت بوخت و ، چې په پوره اخلاص سره یې خپله دنده سر ته رسوله او

په ملګرو کې يې په ديانت، تقوا او زيرکتيا سره شهرت درلود.

## د اشغالګرو په خلاف مبارزه:

چې کله ښکيلاکګرو امريکايانو او متحدينو يې په اسلامي امارت او ګران ټاټوبي افغانستان ناوړه يرغل وکړ؛ نو نوموړي د دې وحشيانه يرغل په خلاف د پخوا په څېر خپل خدمت ته ملا وتړله او د مظلومو افغانانو او يتيمانو د انتقام په پاريې په کلکه مبارزه لاس پورې کړ چې تر پيله او د ژوند تر پايه تقريبا څوارلس کاله يې ټول وخت په هم دې جهادي خدمتونو کې تېر کړل.

## مسوليتونه :

لکه څنګه چې د يرغل په لومړيو کې جهادي خوځښت له ګڼو زحمتو سره تړلې و؛ خو بيا هم مولوي صيب په پوره ميړانې سختو تکليفو ته اوګه ورکړه او دغه خوځښت يې د خپلو نيکو ملګرو په مټ په خپله سيمه کې نور هم ګړندی کړ او ډېر ملګري چې امريکايي تبليغاتو څخه اغيزمن شوی و په دې روحيه وروزل چې کوم کار کې للهيت او د الله جل جلاله مرسته وي نو دښمن که هر څومره پياوړی هم وي، مقابله يې ناشونې نه ده .

د همدې خدماتو ترڅ کې په کال ۱۳۸۳ هـ کې محترم مولوي صاحب د "فاتح کاروان" او "الحمزه استشهادي" کنډک سره د (مفتی ګل احمد احرار) په خدمت پيل وکر، اودنوموری استشهادی کندک يوتکره رهبروچی ګن شمير استشهادی اتلوال بريدونه يی په ديره کاميابی سره رهبری کرل

په کال ۱۳۸۶هـ کې چې کله اسلامي امارت د ډلګيو او محاذونو تشکيل ترتيب کړ؛ نو مولوی صاحب چې د سرښندونکو فدايانو په لارښوونې هم بوخت و، د محاذ مسول او د الهی کاروان د ډلګی مشر په توګه وټاکل شو.

په کال ۱۳۸۹ کې د برکي برک ولسوالی د نظامي کميسون مسؤل په توګه وټاکل شو چې تر کال ۱۳۹۲ پورې يې په خپل مسؤليت کې خورا په ښه ډول د مجاهدينو په رهبري او پالنه کې د نظامي کميسون په چوکاټ کې په زړه پورې خدمت تر سره کړ.

دنظامي کمېسون د دندې له استعفا څخه روسته د اسلامي امارت د استخباراتو د عالي کميسون له خوا د لوګر ولايت د استخباراتو د ريس په توګه وګمارل شو چې د ژوند تر پايه په همدې دندې پاتې شو.

## د شخصيت په اړه:

محترم مولوي صيب له تقوا، ديانت او علم څخه ډېر څه تر لاسه کړي و، خپله دنده يې په ډېره ښه توګه ترسره کوله، هم دا لامل و چې ټول ملګري ترې خوښ او هر وخت ترې د ګټورې مشورې په تمه و،

د اسلام په پاک دين کې لکه څنګه چې د عام وګړي په عيبجن کار د پردې اچولو سپارښتنه شوې او رسول الله صلی الله عليه وسلم ويلي: (چې کوم بنده دمسلمان عيب پټ کړ او دهغه راز يې وساته نو الله تعالی به يې د قيامت په ورځ له شرمندګي وساتي) نو همدارنګه په ځانګړي ډول په جهادي ليکو کې د راز او هغو پټو کارونو چې د ټولګي مشر له خوا يې د ساتلو سپارښته شوې وي د ساتلو او نه افشا کولو يې ډېره سپارښتنه شوې، دا هلته شونې وي چې بنده د پټو رازونو د ساتلو سره بلد وي؛ نو محترم مولوي صيب له نورو ځانګړنو سره سره د راز ساتلو

يوه ستره بيلګه وه ، که هر ډول عمليات به يې په دښمن تر سره کړل دده په خوله به چوپتيا خپره وه او هيڅکله يې هم د خپلو کړنو ښودنه او د راز خورول نه خوښول او نه يې دا هڅه کړې وه چې د نوم او شهرت لپاره د خپلو کارنامو يادونه د ملګرو تر مخ وکړي ، بل هغه څه چې مولوي صيب يې ښايسته کړی و د هغه زيرکتيا او خاموشي وه چې هر کار به يې تر ډېر فکر او سوچ روسته تر سره کاوه او همدا لامل و چې په هره هڅه کې به يې کاميابي په برخه وه.

تاثر : دشهيد مولوي حبيب الرحمن متقي ، دجهادي شخصيت ، قربانيو او سپيڅلتيا په باب دهغه نيږدي ملګری او نوميالی عالم محترم مولوي احمدالله داسې وايي : شهيد مولوي صاحب دالله تعالی درضا او ددين دلوړاوي لپاره خپل هرڅه قربان اونذرانه کړل ، په کابل کې يې يوکوردرلود ، هلته څه مجاهدين ونيول شول . دکابل اجيرې ادارې اعلان وکړ چې هغه فدايان وو ، ظالمانو هغه کورپه زور تخليه کړ تراوسه پکې امنيتي پوسته موجوده ده !!!

يوورورېی دکابل سيريناهوټل او اطلاعات او کلتور داستشهادی عملياتو په تورونيول شوچی اولی اودوهمی محکمی داعدام حکم پری وکه او دريمی محکمې يې دشل زره دالرو په مقابل کې داعدام حکم په شل کاله قيدبدل کړچی اوس هم اسير او دزندان شپې ورځې تيروي .

بل وروريې له دری کاله زندان تيرولو روسته تير کال دغه شپواوورزوکی بياونيول شو

اوسپين ږيری پلاريې دده ترشهادت يوازی ۱۵ ورزی دمخه دلو ګرله محبس نه راخلاص شو

دده دشهادت په ورزيې مجاهده موردباګرام زندان ته دځوی ملاقات ته تللی وه ، نورداسې يوناز ولی او درديدلی مجاهداومشرد قربانيو يادونه اودرناوی که هرڅومره وشي کم اوبيساری به وي ، الله تعالی دې دهغه په څير اتلان نورهم ډيرلکه چې ډير دي اومونږ ته دعمل اووينا ددغسې اتلانو دپاللو اوپه نقش قدم دتللو توفيق راپه برخه کړي . امين

## شهادت:

لکه مخکې مو هم يادونه وکړه چې مولوی صاحب د هغو عملياتو له څارونکو څخه هم وچې صليبيانو ته ملاماتونکی پيغام وچې هغه د استشهاديانو کنډک ده.

نوځکه يرغلګرو او امنيتي کارکونکو ته د پام وړ وګرځېد ، د همدې هدف په موخه په کال ۱۳۸۸ کې د صليبيانو له خوا د يوې شپه نی چاپې په ترڅ کې کلابند شو ، په پوره ميړانه يې ترسهاره مقاومت وکړ چې ګڼ صليبيان يې ووژل او خپله د خدای تعالی په فضل دسو تنو ملګرو ترشهادت وروسته له محاصرې څخه روغ او ژوندی ووت.

بالاخره د ۱۳۹۴ کال د زمري د مياشتې په ۹ نيټه د شنبې په ورځ د مازيګر په پنځو بجو د صليبي ښکيلاک ګرو له خوا د بې پيلوټه الوتکې موخه او هدف وګرځېد او د ډرون حملې په پايله کې په شهادت ورسيد چې ټول ژوند يې د لوی الله جل جلاله په لاره کې د اسلام ددښمنانو په خلاف تېر کړ ، د سنګر سختې او ترخې لحظې يې وګاللې او حق اجل ته يې لبيک ووايه.

روح دې ښاد وي

انا لله وانا اليه راجعون.

# شاه شجاع په شاه شجاع پسې ګرځي

زمری افغان

د ښې حکومتولۍ په چارو کې د اشرف غني ځانګړی استازی وایي، چې پاکستان په افغانستان کې د شاه شجاع او یعقوب خان په څېر کسانو په لټه کې دی او د دې لپاره یې طالبان مامور کړي دي .نوموړي دغه څرګندونې ورمه ورځ په یوه خبري غونډه کړي دي .نوموړي دغه راز له طالبانو سره پر جګړه ټینګار کړی دی او ویلي یې دي چې افغانان باید یوې اوږدې جګړې ته تیاری ونیسي.

د استعمار ځیني سیلاب راوړي خلکو ته د ړندو به سترګه ګوري، خو هېروي چې خلک ړانده نه دي، بلکې دوی ړانده دي چې ځانونه ورته بینا ښکاري .خلک شاه شجاع او یعقوب خان نه هېروي او هغوی د تاریخ یوه توره برخه ده، خو دا هم نه هیروي چې د شاه شجاع پر پله اوس خپله همدا حکومتي مشران، اشرف غني، عبدالله، احمدضیا مسعود او نور روان دي .له امریکا سره د وخت ګندومک تړون د وخت یعقوب خان )اشرف غني، عبدالله، مسعود، اتمر (...لاسلیک کړ .خلک د وخت له استعمار سره د خپل ولس، ارزښتونو او دین پر ضد درېدلې څېرې پېژني او پوهیږي چې څوک څوک دي.

حیرانوونکې ده چې احمد ضیا مسعود خپل ځان نه ویني، خو هغه خصوصیات چې خپله یې لري، په نورو کې یې د لټولو هڅه کوي .د وخت شاه شجاع څوک دی؟ امریکا څوک را وستل؟ څوک جانګري پر خلکو واکمن کړ ؟ چا له امریکا سره د وخت ګندومک تړون وکړ؟ څوک امریکا ته په غلامۍ کې شپه او ورځ د خپلو خلکو پر ضد بوخت دي؟ څوک د امریکایي ګټو لپاره د خپلو خلکو په مړي پېښه ږدي او څوک اوس هم له سفارتونو تغذیه کیږي؟ احمد ضیا مسعود او ملګري دې یې دې پوښتنو ته ځواب ووایي .خلک خو پوهیږي، که مسعود نه پوهیږي، نو له خلکو دې پوښتنه وکړي، خلک به ورته ووایي چې څوک د وخت د شاه شجاع او یعقوب خان رو لوبوي.

که له احمد ضیا مسعود څخه د وخت شاه شجاع او یعقوب خان ورک وي، نو د تاریخ هندارې ته د ودریږي، خپل ځان ته دې وګوري، د وخت ورک شوی شاه شجاع او یعقوب خان به پیدا کړي .دا یعقوب خان او شاه شجاع به بل ځای نه، بلکې په خپل ځان کې پیدا کړي .د وخت شاه شجاع او یعقوب خان که خپل ځان په نورو خلکو کې لټوي، پیدا به یې نه کړي او نه هم دا د وخت د شاه شجاع او یعقوب خان د پیدا کولو لاره ده .دغه راز دا د اصلي شاه شجاع او یعقوب خان د پټولو لاره هم نه ده، ځکه په دې سره نه یعقوب خان پټېدای شي او نه هم شاه شجاع .د خلکو او تاریخ له سترګو د هر وخت شاه شجاع نه شي ورک کېدلی او هر څوک یې پېژني.

# د بې پیلوټه الوتکو څخه پټېدل

## د مجاهدینو ورونو د پام وړ!

لیکوال : عبدالغني عاطف

بې پیلوټه الوتکی په داسې پیاوړو کېمرو باندې سنبال وي چې له څو کیلومتره لوړوالي څخه خلک، موټر او ودانۍ په نښه کولی شي. زیاتره بې پیلوټه الوتکې د شپې دوربینونو یا نایټ ویشنز درلودونکي وي، چې د FLIR سنسور په نامه سره یادیږي کوم چې د ورځې او شپې د انسان د حرارت نښې له لېرې معلومولی شي.

هغه لارې چارې چې د بې پیلوټه الوتکو څخه پرې ځانونه ژغورلی شو، په لاندې ډول دي:

۱. د ورځې پټېدنه: د ونو او ودانیو سیوري څخه ځان پناه کړئ

د پیرو ځنګلي بوټو څخه د طبعي پټېدنې په ډول کار واخلئ او یا هم د پټېدنې جال وکاروئ.

۲. د شپې پټېدنه: د شپې لخوا د ودانیو په منځ کې او یا هم د ونې او پانیزو نباتانو څخه لاندې ځانونه پټ کړئ. لاسي چراغ او یا هم د موټر د چراغونو څخه کار مه اخلئ، تردې چې د لیرې واټن لپاره یې هم مه کاروئ. د شپني ماموریت پر



محال بې پیلوټه الوتکې دغه توکي په اسانۍ سره په نښه کولای شي.

۳. د حرارت پټول: د اضطراري حالت کمبلې چې د هوايي کمبلې په نامه يادېږي، او د مايلر په نوم موادو څخه جوړې شوي وي کولای شي چې د حرارت شعاع ګانو څخه مخنيوی وکړي.

هوايي کمبلې چې د چپنې په ډول د شپې اغوستل کېږي، بدن د حرارت شعاع ګانو د معلومولو څخه مخنيوی کوي.

همدارنګه په اوړي کې چې کله د حرارت درجه د ۳٦ سانتي ګراد او ۴۰ سانتي ګراد تر منځ وي، نو دغه کيمرې د بدن د حرارت او شاوخوا ځای د حرارت درجو تر منځ توپير نه شي کولی.

۴. خرابې هوا ته په تمه شئ. بې پیلوته الوتکې په تيز باد، لوګي، طوفاني باران او يا هم د هوا په سختو شرايطو کې فعاليت نه شي کولی.

۵. د اړيکو نيولو د بې سيم وسايلو څخه کار مه اخلئ. د موبايل او يا هم جي پي ايس پر بنسټ اړيکې به تاسې د ځای د معلوميدلو د خطر سره مخ کړي.

٦. د موټر او يا هم د کور په چت باندې انعکاس کوونکي توکي او يا هم د شيشو ټوټې شيندل به د بې پیلوټه الوتکو کيمرې مغشوشې او غلطې کړي.

۷. د بې پیلوټه الوتکو تېر ايستلو لپاره نانځکي ودرول: د انسان په شکل مجسمه او يا هم د انسان په اندازه د نانځکو په کارولو سره هم د يو چا يا ځای په اړه، دغه الوتکه په ترصد او معلوماتو ترلاسه کولو کې پاتې راتلای شي.

## د بې پیلوټه الوتکو بې کاره کول

بې پیلوټه الوتکې له لرې څخه کنټرولېږي. ددې الوتکو پیلوټان کولای شي چې دغه الوتکې په زرګونه کيلومتره دځمکني مرکزونو څخه لرې کنټرول کړي. پدې الوتکو کې کنټروليدونکې اړيکه د سټلايټ په واسطه ليږديدونکی د معلوماتو اړيکه يا ډاټا لينک ده چې د هغې په واسطه پيلوټ دغه بې پيلوټه الوتکه کنټرولوي.
د ډاټا لينک په نښتلو يا جام کيدلو او يا هم ګډوډ کيدلو سره، د بې پيلوټه الوتکې په کنټرولو کې مداخله کېدلی شي. او دغه مداخله کوونکی شخص کله کله د ډاټا لينک بريښنايي کوډ سګنل ته هم بدلون ورکولای شي:

۱. پريکونه: يو عصري تخنيک يې داسې دی چې يو ډول سافټ وير چې سکای ګريبر نوميږي، دسټلايټ ډيش او ټي وي څپو برابروونکی په واسطه د بې پيلوټه الوتکو پريکوينسي يا څپې پرې کوي. او په دې سره د بې پيلوټه الوتکې څخه او ورته اړيکه پرې کيدای شي.

۲ـ مداخله: د بيلا بيلو څپو او يا هم د څپو يوې ګېډۍ باندې په پيغام ليږدولو سره د پيلوټ او يا هم د بې پيلوټه الوتکې تر منځ اړيکه پرې کېدلی شي.

۳. جي پي ايس غلطول: کيدای شي وړوکې د ليږد وړ جي پي ايس ترانسميټر د جي پي ايس درواغجن سګنل وليږدوي او د بې پيلوټه الوتکې خوځنده سستمونه پرې کړي او د خنډ سره يې مخامخ کړي. د بيلګې په ډول سره کيدای شي چې دغه بې پيلوټه الوتکې په تخريبيدونکي لارې باندې پخپله روانه کړی شي، آن تردې چې دغه بې پيلوټه الوتکې تښتول او يا يې په يوه ځښناست ليکه کې ښکته کولای هم شي.

# دپاسپورټ پرسر چنې له ۴۰۰ډالرو پیلیږي

خ - د

پاسپورټ ادارې ته هره ورځ تر ۱۰۰۰۰ زیات مراجعین ورځي، خو هغو کسانو ته په بېړه پاسپورټ ور کول کېږي چې پیسې ور کوي . دلته د بډو اندازه مالومه نه ده، چنې وهل له څلور سوه ډالرو پیلېږي، خو بیا د پاسپورټ اخستونکي او مامور تر جوړښت پورې ده چې په هر څو سره جوړ شول.

له دې سره سره چې د افغانستان د پاسپورټ ادارې په تېر یو نیم کال کې پر شېږ سوه زره خلکو الکټرونیکي پاسپورټونه وېشلي، خو د یادې ادارې ډېری مامورین په بډې اخستلو تورن دي او د هغو کسانو پاسپورټونه د میاشتو میاشتو لپاره په نوبت کې اېښودل کېږي چې د پاسپورټ ریاست مامورینو ته بډې نه ور کوي.

د پاسپورټ ریاست د مالوماتو له مخې، کابو پنځوس زره کسانو د پاسپورټ اخستلو په پار یادې ادارې ته خپل غوښتن لیکونه او عریضې ور کړې دي، خو د دوی هر یو باید له څلوېښتو تر شپېتو ورځو پورې انتظار وباسي، څو خپل پاسپورټ تر لاسه کړي.

د یادې ادارې مسوولینو په بیابیا ویلي چې دوی دومره زیاتو مراجعه کوونکیو ته پاسپورټونه نه شي چاپولای او وېشلای.

کابو شل ورځې له مخه د پاسپورټ ریاست چارواکیو ویلي وو چې د یوې میاشتې په دننه کې به د خپل ورځنې چاپ او وېش اندازه له دوه زره ګڼې څخه څلور زره ګڼې ته لوړه کړي.

یو کس چې له لسو ورځو وروسته یې خپل پاسپورټ تر لاسه کړی وایي، که رشوت ور کړې او یا هم په یاده اداره کې څوک وپېژنې، تر پنځو ورځو په کم وخت کې خپل پاسپورټ تر لاسه کولای شې.

دی وایي، په یاده اداره کې نوم، د ټلیفون شمېره او نور مشخصات ثبتېږي، ان د یادې ادارې د ځینو کار کوونکیو تر نظر لاندې وې، چې پوه شي، پیسې ور کوې، پر ته له ځنډ او پر ته له دې چې خپل نوبت ته انتظار وباسې، پاسپورټ تر لاسه کولای شې.

د یاد کس په وینا، د پاسپورټ ادارې یوه مامور ور ته ټلیفون وکړ او ویل یې، که غواړې چې تر سبا مازدیګره دې پاسپورټ تر لاسه کړې، نو درې سوه ډالر راکړه او سبا مازدیګر درې بجې دې په خپل پاسپورټ پسې راشه.

یاد کس وایي؛

" ماور ته وویل، عریضه مې په خپل نوبت کې کېښېږده، دومره زیاتې پیسې نه ور کوم، بلاخره زموږ دواړو تر منځ په ۵۰ ډالره توافق وشو".

دغه کس وایي، ماله یوه ولایت څخه عریضه کړې وه او راته ویل شوي وو چې یوه نیمه میاشت وروسته به زه خپل پاسپورټ پسې ورځم، خو لس ورځې وروسته مې خپل پاسپورټ د ۵۰ ډالرو او د ټلیفون په پنځه سوه افغانۍ کریډېټ کارت تر لاسه کړ ای شوای.

دی وایي، یوازې زه نه یم چې خپل پاسپورټ مې په دې ډول تر لاسه کړ، لسګونه کسان یې په دې ډول تر لاسه کوي.

پاسپورت ریاست ته د ورځې په اوږدو کې د نهو او لسو زرو په شاو خوا کې د پاسپورټ اخیستونکي مراجعه کوي او غواړي چې له برېښنایي پاسپورټه برخمن شي، دې لړۍ له تېرو پنځو میاشتو راهیسې زور اخستی.

په ۲۰۱۲ کال کې په افغانستان کې د الکترونیکي پاسپورټونو د وېش لړۍ پیل شوه. په دغو پاسپورټونو کې شخصي مالومات د بایو میټرک سیستم له لارې ثبتېږي چې د جعل کارۍ مخه یې تر ډېره بریده نیول کېږي.

خو څه موده له مخه یوه ایرانۍ مېرمن په عربي متحده اماراتو کې ونیول شوه چې له افغاني پاسپورټه یې استفاده کوله او دغه پاسپورټ یې د پنځه‌نیم زره ډالرو په بدل کې جوړ کړی وو. دې افغانستان نه وو لیدلی، خو پاسپورټ یې جوړ کړی وو.

خو د افغانستان د پاسپورټ رییس جنرال سید عمر صبور سرخط ته وویل، په دې برخه کې دې له دوی سره ولس همکاري وکړي، هغه کسان دې ورو پېژني چې پیسې ترې غواړي.

دی وایي، په دې برخه کې پر مختګ شوی، خو له نور څه ویلو یې د ټلیفون پر کرښه ډډه وکړه.

یوه میاشت له مخه افغان ولسمشر په یو تقنیني فرمان کې د پاسپورټ قانون، چې ویل کېږي په ټولو نړیوالو معیارونو برابر دی، توشیح کړ .

د دې قانون له مخې د پاسپورټ موده له پنځو کلونو څخه لسو کلونو ته وغځېده او د هېواد د ګڼو لپاره یکې ټولې لازمې اسانتیاوې په پام کې نیول شوې دي.

د دې قانون له مخې د لویانو لپاره یوه ګڼه پاسپورټ په پنځه‌نیم زره افغانۍ او د کوچنیانو لپاره په درې زره، دوه سوه او پنځوس افغانۍ ور کول کېږي.

۲۳ستر ګې به څنګه ساتو؟

د انسان د بدن هر غړی ځانګړی ارزښت لري، خو د بدن یو شمېر داسې اندامونه او غړي هم شته چې په اغېزمن کېدو سره یې د ژوند ورځنۍ چارې له خنډ او ځنډ سره مخ کېږي. له دې ډلې یو هم ستر ګې دي چې په ژوند کې اساسي رول لوبوي.

کله چې د ستر ګو تور له منځه ولاړ شي، نو دې حالت ته تر ډېره د ستر ګو پرده ویل کېږي چې په طبي اصلاح کې ور ته کاتاراکت وایي.

دغه ناروغي تر ډېره په بوډاګانو او یا هم د پاخه عمر په کسانو کې پیدا کېږي، خو د ځینو عواملو له مخې په ځوانانو او ماشومانو کې هم لیدل کېږي.

ډاکټران وایي، زړېدل، پر ستر ګو د پڅو او تېرو ضربو لګېدل، د ځینو درملو استعمال، شکره او ځینې نورې ناروغۍ پر ستر ګو د پر دې د راتلو لامل ګرځي، خو کله ناکله دا ناروغي ارثي هم وي.

د ستر ګو د پر دې یوه روښانه نښه دا ده چې درد نه لري، ورو ورو یې د ستر ګو دید کمزوری کېږي او پر ستر ګو پر ده راکښته کېږي.

کله چې پر ستر ګو پر ده راکښته شي، نو په لومړي سر کې ناروغ ګمان کوي، پر ستر ګو یې جال غوړېدلی دی، هر څه ور ته پیکه او بې رنګه ښکاري.

د ستر ګو تور خپل اصلي رنګ له لاسه ور کوي او خړ ې ښکارېږي .

خو د درملنې تر څنګ ځینې خلک کورنۍ درملنې هم پرې کوي چې ډاکټران له دې چارې سره سخت مخالف دي، ځکه چې ستر ګې د وجود خورا حساس غړي دي او باید د درملنې لپاره یې ډاکټر ته مراجعه وشي .

ډاکتران سپارښتنه کوي چې د ستر ګو سمه ساتنه او پالنه دې وشي، ځکه له ډېرې کوچنۍ صدمې څخه ستر ګې له بېلابېلو ناروغیو سره مخ کېدای شي، ان په ستر ګو پر ده راتلل د ستر ګو د همېشني ړندېدو سبب ګرځېدای شي.

د ستر ګو د دید کمزور تیا، د ستر ګو پاړسوب او کوږوالی په ستر ګو د پر دو د راتلو نښې نښانې دي.

د ستر ګو د ناروغیو متخصصین وایي چې د زېږون یا امېندوارۍ پر مهال په خپل سر دارو خوړل هم په ماشومانو کې د ستر ګو د پر دې د پیدا کېدو سبب کېدای شي.

د ستر ګو پر دې د درملو له خوړلو او یا هم په پر مختللي حالت کې له جراحي عملیاتو سره تداوي کېدای شي.

کهچېر ېهر ډولویټامیناوېر وټینلر ونکیخواړهو خوړلشي؛دفلز کارۍ پر مهاللهځانګړ وچشمو کار واخستلشي؛پهسر لهضر بېخوړ لوځانوساتلشیاود کم پیوتر کاروېپر مهاللهعینکو ګټهپور تهشي، تر ډېر هبریدهبهپهستر ګودپر دور اتللوڅخه مخنیوی شوی وي( سرخط)



# چهره زشت کابل

منابع خارجي

روز ۳۱ اکتوبر برابر است با روز جهانی شهرها. در بسیاری از شهرهای جهان از این روز تجلیل به عمل می‌آید. مسئولان شهرها در تلاش اند تا با استفاده از چنین روزی طرح‌ها و ایده‌های جدید شان را برای آینده‌ی شهر خود شان ارائه کنند تا شهر شان از هر لحاظ ایده‌آل و نمونه باشد.

اما کابل، شهری که هیچ چیزی معیاری ندارد؛ نه ساختمان، نه جاده و از قرار معلوم طرحی برای آینده‌اش هم ریخته نشده است. کابل شهری است که افزون بر ۵ میلیون جمعیت هنوز یک کانالازیسیون برای دفع فاضلاب ندارد. در فقدان ویژگی‌های شهری، اما چیزی که کابل فراوان دارد زباله‌ها و انبار کثافات است. زباله‌هایی که روزها و شاید هفته‌ها در اطراف زباله‌دانی‌ها باقی می‌مانند و بوی متعفن آن هر رهگذری را آزار می‌دهد. در کنار این، افزایش روز افزون معتادان و گداها به دلیل ضعف حکومت بر زشتی این شهر افزوده است. کابل شهری است که پارک‌ها و گلدان جاده‌هایش را معتادان ژولیده و بی‌خانمان پُر کرده است. از این نظر، کابل شهری تماشایی است که حتا کودکان خردسال هم به تماشای آن می‌نشینند.

گاهی آن‌قدر آدم‌های مختلف از هر سن و گروه به تماشای این معتادان ایستاده می‌شوند که واقعاً تشخیص معتاد از غیر معتاد دشوار می‌شود.

شهر من، شهری که زنان متکدی برای به دست آوردن پول بیشتر، کودک خردسال خود را تریاک می‌دهند تا بتواند دل رهگذران بیشتری را به درد آورد و پول بیشتری به دست بیاورند. آری این چهره‌ی واقعی شهر من، شهر تو و شهر همه کسانی که در این‌جا، یعنی کابل زندگی می‌کنند است.

یکی از ویژگی‌های معیاری بودن شهر، پاکی است. اما متاسفانه شهر کابل با قدمت طولانی که دارد، پر است از زباله و کثافات. زباله و کثافات که هر روز مسئولین شهرداری وعده انتقال و جمع آوری آن را می‌دهند اما انگار به نظر می‌رسد که این زباله‌ها هرگز انتقال داده نخواهند شد. بیشتر شهروندان شهر کابل از چهره کنونی شهر ناراضی اند و می‌گویند که چهره شهر کابل هیچ شباهتی با پایتخت یک کشور ندارد. همشهریان کابل به این باور اند که : «وضعیت فعلی شهر کابل بسیار اسفناک است.

انبار شدن زباله‌ها در هرجا، نشان‌دهنده این است که نه مردم به فکر پاکی شهرشان هستند و نه مسئولین شهرداری.» ساختمان‌های بلند چند طبقه‌ی فقط نما دارند و هیچ کدام از این‌ها معیاری ساخته نشده‌اند. از همین رو در اثر زلزله به راحتی ویران می‌شوند.»

از معیارهای یک شهر، داشتن ساحات سبز، جلوگیری از تراکم نفوس، فراهم شدن خدمات و سرانجام راضی بودن مردم است که نشان می‌دهد یک شهر تا چه میزان معیاری می‌باشد. نبود یک سیستم ترانسپورتی منظم در سطح شهر، جمع شدن بسیاری از افراد بیکار در یک جا به امید پیدا کردن کار و ده‌ها مورد دیگر سبب شده است تا کابل چهره‌ی پر ازدحام و بهم ریخته‌ای به خود بگیرد.

محمد احسان یکی دیگر از شهروندان شهر کابل می‌گوید: «متاسفانه شهر کابل یک سیستم بسیار کهنه و فرسوده دارد. مردم هم به همان وضعیت عادت کرده‌اند. مردم عادت کرده‌اند که هر روز از کنار انبوهی از زباله‌ها بگذرند و گاهی یک پلاستیک پر از زباله دیگر را به انبوهی از این زباله‌ها اضافه کنند.» به گفته وی مردم به این شلوغی‌ها و سرو صداهای زیاد که آلودگی صوتی ایجاد می‌کنند عادت کرده‌اند، از همین رو برای مردم عادی شده است و می‌توان گفت که مردم به این مسایل بی تفاوت شده‌اند.

او اضافه می‌کند که همین بی‌تفاوتی مردم و در کنار آن مسئولین باعث شده است تا شهر چهره زشتی به خود بگیرد. هم اکنون شهر کابل با چالش‌های جدی جمعیتی، اقتصادی، اجتماعی، زیست محیطی و برنامه‌ریزی روبه‌رو است که به یک برنامه موثر و کارآمد برای مقابله با عواقب تغییرات شهرنشینی ضرورت دارد.

## د لبلبو یا جغندر له حیرانوونکو گټو څخه خبر کړئ

د جغندر ژور سور رنګ ښيي چې دغه خواړه د ویټامینونو او منرالونو یو له غوره منابعو څخه دی. دلته مو د جغندر له ځینو روغتیایي ګټو سره اشنا کوو.

جغندر د بدن زهري موادو په پاکولو کې مرسته کوي
دغه مغز لرونکي خواړه یوه اندازه ګټور مواد د بیټالینز (Betalains) په نامه لري کوم چې له ځیګر څخه زهري مواد له منځه وړي او د ځیګر روغتیا پیاوړی کولو کې مرسته کوي. دغه خواړه له ځیګر سره د هغه د فعالیتونو په ترسره کولو کې مرسته کوي او له بدن څخه زهري مواد خارجوي. په دغه خواړه کې شته اکسیډنټ ضد خاصیت د بدن ازاد راډیکلونه خنثی کوي، د پړسوب مخه نیسي، د سرطان او نورو مهلکو ناروغیو د کوربه د پر مختګ مخه نیسي.

### د بدن د اړتیاوړ غذایي مواد پوره کوي

په جغندر کې شته ویټامینونه او غذایي مواد به مو حیران کړي. جغندر زیاته اندازه ویټامین اې(A) ، بي ۶(B6) ، سي(C) ، اي (E) او کې (K) لري. دغه خواړه همدارز د بدن د اړ تیاوړ ځینې منرالونه لکه منګنیز(Manganese) ، پوتاشیم (Potassium)، مګنیزیم(Magnesium) ، فاسفورس (Phosphorous)، مس (Copper)، کلسیم (Calcium) او زینک (Zinc) پوره کوي. جغندر خپل ترکیب کې اوسپنه هم لري چې له همدې امله د دغې خواړه خوړل امیدواره ښځو او دوینې کموالی لرونکو ناروغانو ته تر ټولو غوره درمل ګڼل کیږي.

### عصبي روغتیا غښتلی کوي

په دغه خواړه کې شته ځینې مواد او مرکبات اعصابو ته ډیره زیاته ګټه لري او انسان خوشحاله کوي. همدارز دغه خواړه د بیټین (Betaine) نومې موادو هم غوره منبع ګڼل کیږي. بیټین نومې مواد د سیروټانین (Serotonin) او ډوپامین (Dopamine) نومې هارمونونو کوم چې د خوښۍ هرمونونه دي په فعاله کولو کې مهم رول لوبوي.

### بدن ته انرژي ور کوي

دغه خواړه د عضلاتو تقویه کوونکي په نوم هم شهرت لري. دغه خواړه هغو کسانو لپاره چې اندام جوړولو ورزش کوي ډیره زیاته ګټه لري. جغندر د بورې او قندي موادو غوره منبع هم دی کوم چې کولی شي د بدن د اړ تیاوړ انرژي پوره کړي. د جغندر له خوړوالی مه ویریږئ ځکه چې د جغندر قندي او خواړه مواد روغتیا لپاره هیڅ ډول زیان نه لري.

# القانتون

## المخبتون لربهم

الناطقون بأصدق الأقوال
يحيون ليلتهم بطاعة ربهم
بتلاوة و تضرع و سؤال
وعيونهم تجري بفيض دموعهم
مثل انهمار الوابل الهطال
في الليل رهبان و عند جهادهم
لعدوهم من أشجع الأبطال
بوجوههم أثر السجود لربهم
و بها أشعة نوره المتلالي

ترجمه: «پرهیزگاران ونمازگزارانی که در برابر پروردگارشان، کرنش می‌کنند وراست‌ترین سخنان را بر زبان می‌رانند و شب‌هایشان را به طاعت و بندگی پروردگارشان و نیز تلاوت قرآن وزاری و عرض نیاز به درگاهش سپری می‌نمایند و از چشمانشان، همچون قطرات درشت باران، اشک سرازیر می‌گردد؛ آنان، پارسایان شب‌اند و هنگام جهاد و رویارویی با دشمن، از شجاع‌ترین پهلوانان به‌شمار می‌روند. در سیمایشان، آثار و نشانه‌های سجده برای پروردگارشان به چشم می‌خورد و انوار درخشانش در چهره‌ی آنان، نمایان است.»

# Srak

## مجاهدینو ته د اسلامي امارت د زعیم امیر المؤمنین ملا اختر محمد منصور (حفظه الله) د لومړنی مخابروي وینا څو کرښې

مجاهدینو وروڼو!

تاسي د علماؤو او د وطن د قومي مخورو او مشرانو او مخلصو انسانانو سره ښه چلند کوئ، د هغو احترام کوئ، ښه سلوک ورسره وکړئ، له هغو څخه مشورې واخلئ او له هغو سره خپل نظریات او مشورې شریکي کړئ، دا به ستاسي د کامیابی علامه وي.

د اولس چې کوم عام المنفعه ځایونه دي، هغو ته ضرر ونه رسیږي او زیانمن نه شي، هغه د اولس په ګټه دي، اولس ته یې فایده رسیږي، لکه بندونه، پولچکان، کلینک یا مدرسه او ښوونځی چې عام المنفعه ځایونه دي، او اولس ترې استفاده کوي، که مو په وسه وي او هرڅومره چې ستاسي وس او طاقت وي په عام النفعه کارونو کې کومک ورسره وکړئ، او زمینه ورته برابره کړئ، چې دوی د هغو څخه استفاده وکړي، او د دوی د هوسایي سبب وګرځي، د دوی د صحت سبب وګرځي، او د دوی د علم او تدریس او تعلیم سبب وګرځي، هغو کارونو ته یې متوجه شئ چې هغه د اسلامي شریعت او د اسلامي قانون سره برابر وي، په هغو کې ورسره همکاري وکړئ، زمینه ورته برابره کړئ چې له داسې سهولتونو څخه برخمن شي، چې هغه د دوی د ژوندګی دسهولت لپاره ښه ذریعه وګرځي.